


د ۱۳۵۳ کال
څلرمه گڼه

اطلاعات او کلتور

د افغانستان د جمهوري، انقلاب مشر، پیشوا ښاغلی محمد داؤد

«د ۷ مخ پاته»

# د جمهوري دولت د یو کلن ...

د چنګاښ اوله: ۴۹۶ بې مځکې کورنو ته په هلمند کې مځکه ورکول سوه. د داخلي او خارجي پانګې اچولو قانون نافذ سو.

د ګمرکاتو نوې تعرفه نافذ سوه او د کتاب د پراختیا سیمینار پرانستل سو.

د چنګاښ ۳: دولت د کندهار د یوې فابریکې د ودانۍ فعالیت له پاره ۱۰ ملیونه افغانۍ منظورې کړې.

د چنګاښ ۴: په هلمند کې ۱۲۷ بې مځکې کورنیو ته مځکې ورکول سوې.

د چنګاښ ۸: د وزیرانو مجلس د لومړۍ درجې تالیف او ترجمې د پاره سل په سل کې د حق الزحمې زیاتوب ومنی.

د چنګاښ ۱۰: اعلان وسو چې په هیواد کې د پنبې کرنه په سل کې پنځوس زیاته سوې ده.

د چنګاښ ۱۱: د افغانستان او بنګله دیش ترمنځ اقتصادي تړون لاسلیک سو.

د چنګاښ ۱۲: اعلان وسو چې د بګرامیو د نساجۍ د فابریکې کلنۍ تولیدات د ۱۵ ملیونو څخه ۲۰ ملیونو مترو ټوکر ته لوړ شوه او د اردو او ساختمان ۲۴۰ ماشینان به نوي وارد کړي.

د چنګاښ ۱۶: د مالیې د وزارت په تجویز د کروندګرو اضافه غنم د ارزاقو او عامه اړتیاوو د ریاست د خوا رانیول کیږي.

د چنګاښ ۱۸: د اطلاعاتو او کلتور د وزارت د پښتو د تقویې او انکشاف د امریت د خوا د افغانستان نومیالي لومړی ټوک د چاپه ووت.

د چنګاښ ۱۹: د کندهار د اوبو د رسولو پروژه چې د ۸۰۰ زرو تنو له پاره د څښلو صحي اوبه برابروي پرانستل شوه.

د چنګاښ ۲۰: په پنځوسو مستحقو کورنیو باندې د هلمند په وادي کې مځکې وویشل سوې دا پنځوس کورنۍ د فاریاب د ولایت دي. د مالیې وزارت اعلان وکړ چې د جمهوریت دوه ډوله سل افغانیګي او شل افغانیګي نوټونه چې د زموږ د ملي رهبر عکس پر چاپ شوی دی په چلند ته واچول.

د شیښې جوړولو فابریکه چې د شپږو کالو را په دې خوا ولاړه وه د بایسکل جوړولو د فابریکې په اډه کې په کار واچول شوه.

د چنګاښ ۲۲: د دولتي تصدیو نوی قانون چې د وزیرانو د مجلس په وروستۍ غونډه کې تصویب سوی و نافذ شوه.

د شوروي اتحاد د کیمیاوي صنایعو وزیر د یو هیئت په مشرۍ کابل ته راغی او د مربوطو مقاماتو سره یې په کتنې پیل وکړې. د هرات د اوبو د رسولو پروژه چې ۷۳ زرو تنو ته صحي اوبه برابروي په کار واویده.

د چنګاښ ۲۳: د کورنیو چارو وزارت اعلان وکړ چې پر ۲۱۵۶ مستحقو کورنیو د هلمند په پروژه کې مځکې ویشل کیږي.

د چنګاښ ۲۴: د مزار شریف د بریښنا او سرې فابریکې او د آمو د سیند د پاسه د ګاز د پایپ لاین هوایي معبر د قرآن پاک د څو آیاتو تر لوستلو وروسته د دولت د رئیس او صدر اعظم ښاغلي محمد داؤد په مشرۍ د افغانستان د جمهوریت د لوړتیا ارتقا په دعا د کانو او صنایعو وزیر پوهاند عبدالقیوم پرانست.

د ۱ مخ پاته

## د جمهوري انقلاب.

د څه ورځکه د کرنې د پراختیا په هیله بې مځکو خلکو ته مځکې ورکول سوې او د کروندګرو وضع تر مطالعې لاندې نیول سوې ده چې ښايي ډېر ژر به زموږ زراعتي محصولات سربېره پر دې چې داخلي اړتیاوې لیرې کړي د خارجي بازارو ته هم عرضه سي.

په فرهنګي او کلتوري چارو کې د ستاینې وړ اقدامات سوي دي چې یو ځو مطبوعاتي جوایزو ویشل د علم او فرهنګ د توسعې او انکشاف په منظور د قدر وړ اقدام بلل کیږي.

لنډه دا چې د دې نظام یوازنی هدف د ګران هیواد اعتلا او خلکو ته خدمت کول دي او ځکه وژو لدانه په هره ساحه کې ددغې مقدسې هیلې د ترسره کولو په غرض د ستاینې وړ بریالیتوبونه موږ په برخه سوي دي چې د هغو د ټولو ګنجایش دلته نسته بلکه د هغو یوه فشرده به په همدې ګڼه کې د کرونولوژي تر عنوان لاندې ولولئ. موږ د دې طلایي عصر د اغاز او د دې ملي قیام د بریالیتوب او د دغه د لومړۍ کالیزې له امله د دغه نهضت ستر پیشوا ښاغلي محمد داود او د دغه قدر کارو ملګرو ته د افغانستان نومیالي اردو او ټولو وطنوالو ته د زړه له کومي مبارکي وایو.

تل دې وي افغانستان
دایم دې وي جمهوریت
ژوندی دې وي د جمهوري
انقلاب لوی رهبر

# کندهار مجله

د کندهار مجلې کارکوونکي د جمهوري انقلاب
دلومړي بختوري کاليزې له امله خپل نيک
تمنيات او ډيرې ښې هيلې د جمهوري انقلاب
ستر پيشوا د دولت رئيس او صدراعظم
ښاغلي محمد داود د مرکزي کميټې
او د جمهوري حکومت غړو ،
د افغانستان قهرمان اردو
او افغان نجيب اولس ته
وړاندې کوي

# ملی سرود

څوچی دا مځکه آسمان وی
څوچی دا جهان ودان وی
څوچی ژوند په دی جهان وی
څوچی پاته یو افغان وی
تل به دا افغانستان وی

تل دی وی افغان ملت
تل دی وی جمهوریت
تل دی وی ملی وحدت

تل دی وی افغان ملت، جمهوریت
تل دی وی افغان ملت، جمهوریت

ملی وحدت، ملی وحدت

«بېنوا»




مسئول مدير: کريم (طالب)
اداره: د شهيدانو واټ
د ټيلفون نمبر: ۲۸۸۴
د ۱۳۵۳ کال د چنګاښ مياشت


# د جمهوري انقلاب بختوره کاليزه

د بشري ژوندانه قاموس د خوږو او ترخو حقايقو يوه مجموعه ده چې د تاريخ په نامه کله کله د يوې ټولنې بدبختي، شکنجې، فلاکتونه او محروميتونه بيانوي

او کله بيا دغې ټولنې په ايثار، فداکارۍ او شهکارۍ وياړي.

مثلاً خبره دا ده چې کله چې يوې ټولنې ته د استعمار

استثمار او خودخواهۍ احساس لاره پيدا کړي، نو دغې ټولنې خوشبختي په بدبختۍ او ښادي په وير بدليږي. د بده مرغه زموږ ګران هيواد هم په خپل تاريخي سير کې

وخت نا وخت د استعمار او استثمار د ناوړو منګولو سره مخامخ شوی دی. خو څرنګه چې د افغاني اصالت خاصه د وطن مينانو هيڅکله استعمار او استثمار ګرانو ته

د بقا او بهره برداري موقع نه ده ورکړې. ددې مينې خوږ منو خوا خوږو تل په داسې حالاتو کې د همت لستوڼي نغښتي دي او ددې پاکې خاورې څخه يې د فلاکت او

مصيبت تورې دورې ليرې کړې دي.

يوه د دغو تورو دورو څخه د افغانستان د وروستنۍ سلطنت توره دوره وه چې د داخلي استثمارګرانو د شومو

او ناوړو هيلو او شخصي اغراضو له امله د ملت ستوني ورځ په ورځ زبېښلې کېدې. اقتدار او سلطه پر شخصي ګټو بنا وه ځکه نو نتيجه يې هم مطلقه بيروکراسي او

کار شکني وه. د همدې سبب وو چې ملت په ډېر فلاکت د يوه روښانه سبا په اميد شپې سبا کولې.

څو چې ددې خاورې قهرمان او مجرب شخصيت

د خپلو وطنپرستو ملګرو په ايثار او فداکارۍ هغه توره دوره په يوه روښانه سبا بدله کړه. دا وخت وو چې د ګران هيواد په افق کې د انقلاب ستوري وځليدې.

دا د انقلاب ستوری د افغانستان د طلايي عصر او نوي نهضت د آغاز پيشنازدی چې هيواد والو ته يې د يوه با عظمته او مترقي افغانستان زيری ورکړ.

ورپسې د راډيو افغانستان له څپو څخه زموږ د محبوب رهبر دغه جمله چې «په افغانستان کې شاهي رژيم له منځه ولاړ او د هغه پر ځای جمهوري رژيم برقرار شو» يو

داسې نيک پيغام او ارمغان وو چې د الهي موهبت څخه يې الهام اخيستی.

ددې بختور پيغام هر کلی د افغانستان په تاريخ کې

بالکل بې سابقې دی ځکه چې جمهوري انقلاب د خلکو د ارادې څخه منشأ اخيستې ده او پرته د خلکو د خدمت کولو او د ملت د بدبختۍ د ليرې کولو څخه بله هيله نه لري،

ځکه نو د جمهوري نظام په يوه کلن عمر کې، د هيواد د عالي مصالحو د ساتنې په منظور، د ملي ګټو د بهبود په هيله او د افغانيت اصل ته د خدمت کولو په غرض د

ژوندانه په سياسي، اقتصادي، اجتماعي تخنيکي او فرهنګي چارو کې يو کلي ريفورم او بنيادي بدلون منځ ته راغلی دی.

د هيواد د اقتصادي بنيې د تقويې په غرض د کانو او معدنو استخراج ته زياته پاملرنه شوې او په را ايستلو يې پيل شوی دی. د قاچاق مخنيوي چې د ملي اقتصاد پلي

وهي په جدي توګه کيږي. د ملي صنايعو توسعه او انکشاف او د کارګرانو د ژوندانه د سطحې د بهبود په غرض لازم تجويزونه نيول شوي دي.

«پاتې د يشتي په دريم مخ کې»

د چنګاښ ۳۱:

امریکا، انګلستان، پاکستان بنګله دیش، ترکیې او بلغاریا زموږ نوی نظام په رسمیت وپیژاندی

د زمري ۱:

د کندهار د خلګو د مبارکۍ جواب د انقلاب د رهبر له خوا راورسید.

د پښتونستان د مشرانو د مبارکۍ پیغامونه کابل ته ورسیدل

فرانسې، یوګوسلاویا، پولنډ او عراق زموږ نوی رژیم په رسمیت وپیژاندی.

د زمري ۲:

د هیواد د بین المللي مطبوعاتو د نمایندګانو سره زموږ د جمهوریت موسس مصاحبه وکړه او په هغه کې یې بهرنیو مسایلو ته رڼا واچوله او دوی ویل چې د اقتصادي او اجتماعي عدالت قیام د نوی نظام عمده هدف دی.

د غزني سیل وهلو ته د دولت رئیس د همدردۍ پیغام ورسول شو.

د زمري ۳:

د کوریا دیموکراتیک جمهوریت زموږ نوی رژیم په رسمیت وپیژاندی.

د داخله وزارت زاړه پاسپورتونه لغوه او نوی پاسپورتونه یې په عوض کې جاري کړل.

د زمري ٤:

د دې دپاره چې قانوني خلاګانې ته اسې د جمهوري دولت رئیس دري جمهوري فرمانونه صادر کړل چې یو یې د پخواني اساسي قانون د دولت د رئیس د صلاحیت په باب دوهم د عسکري صاحب منصبانو او د دولت د مامورینو په باب او دریم د قضا مربوط ؤ.

استرالیا او مصر زموږ نوی رژیم په رسمیت وپیژاندی.

د زمري ٥:

هنګري، سویډن، جاپان او ایټالیا نوی رژیم په رسمیت وپیژاندی.

د زمري ٦:

د لیبیا د جمهوریت هیئت د دولت رئیس په حضور ومنل شو. یمن، الجزایر، چین، رومانیا او لیبیا زموږ نوی رژیم په رسمیت وپیژاندی.

د زمري ۷–۸:

په کندهار کې په زرګونو خلګو د یوې غونډې په ترڅ کې د جمهوري نظام هرکلی وکړ.

په پروان کې یو [illegible] د جمهوریت په نامه افتتاح شو.

د مرکز او ولایاتو مامورینو د نوي نظام سره د وفادارۍ لوړه وکړه.

سوریې، ارجنټاین، ډنمارک، موریتانیا، سومالي، یوګانډا، سیلون او سویس زموږ نوی نظام په رسمیت وپیژاندی.

د زمري ۹:

د کندهار د پنځوسو زرو کسو د جمهوریت ستر مارش اجرا کړ او د جمهوریت د وفادارانو په حیث یې پرشوره شعارونه ورکړل.

د کویت او د عربي امارتو له خوا د افغانستان جمهوري رژیم په رسمیت وپیژندل شو.

د زمري ۱۰:

مرکزي کمېټې د افغانستان د جمهوریت د لومړۍ کابینې غړي وټاکل. د جنوبي ویتنام موقتي انقلابي حکومت زموږ نوی رژیم په رسمیت وپیژاندی.

د زمري ۱۱–۱۲:

د کابینې لومړۍ غونډه وشوه.

سینګال او تونس زموږ نوی رژیم په رسمیت وپیژاندی.

د زمري ۱۳:

د جمهوریت ورځپاڼه خپره شوه.

د زمري ۱٤–۱٥:

مرکزي کمېټې فیصله وکړه چې ټول وارده ضابطان دې د دریم بریدمن په حیث او پرته د جنرالي د رتبې څخه د اردو ټولو منصبدارانو ته یو کال قدم منظور شو.

چیلي، د ویتنام د یموکراتیک جمهوریت، نیپال، اندونیزیا او هالنډ زموږ رژیم په رسمیت وپیژاندی.

د کابل ترافیک ۹۰ عرادې بې محصوله موټران ودرول.

د زمري ۱٦:

اعلان وشو هغه کسان چې د رسمي اجیرانو او مستخدمینو څخه شخصي استفادې کوي تر عدلي

تعقیب لاندې به ونیول شي.

دزمری ۱۷:
د کابل پولیتخنیک او د جنګلک د تخنیکم سندونه د افغانستان او شوروي اتحاد تر منځ په کابل کې لاسلیک شول.

دزمری ۲۱:
د کمبوډیا ملي جبهې او د یمن دیموکراتیک جمهوریت زموږ رژیم په رسمیت وپیژاندی.

دزمری ۲۳-۲۴:
د پوهنې وزارت تصمیم ونیوی چې د معارف پروګرامونه د جمهوري نظام سره برابر تنظیم کړي.

لبنان د افغانستان جمهوریت په رسمیت وپیژاندی د صدارت حسابي تفتیش د سپین زر شرکت پلټنه شروع کړه.

دزمری ۲۸:
د پرچنا موسسې د پلټنې کار شروع شو. په جلال آباد کې د جمهوریت سفر مارش اجرا شو.

دزمری ۳۰:
عدلیه وزارت ته فرمان صادر شو چې د افغانستان د پوهنې ابتدایي، مسلکي او دیني تعلیمات د دولت له خوا اداره کیږي.

دوږی لومړۍ ورځ:
زموږ ملي رهبر د خپلواکۍ د پنځه پنځوسمې کالیزې په مناسبت د (خلکو ته خطاب) تر نامه لاندې تاریخي وینا ایراد کړه.

دوږی ۲:
د الجزایر د جمهوریت یوه هیئت د هغه هیواد د جمهوري رئیس پیغام د دولت رئیس او صدراعظم ته وړاندې کړ.

دوږی ۳:
د ملګرو ملتو د موسسې سره د یو قرارداد په اثر د اریانا افغان هوایي شرکت د بنګله دیش څخه پاکستان ته او د پاکستان څخه بنګله دیش ته د پناه وړونکو انتقال شروع کړ.

دوږی ۴:
د جمهوریت ورځپاڼې د فرانس پرس په حواله ولیکل چې د افغانستان پخوانی مخلوع پاچا محمد ظاهرشاه د سلطنت څخه ځان مستعفي بللی او جمهوري نظام چې د افغانستان د خلکو د عمومي تایید مورد ګرځېدلی، قبول کړی دی.

دوږی ۵:
افغاني هیئت د عبدالرحمن پژواک په مشرۍ د ناپیلو هیوادو د مشرانو په جرګه کې د ګډون لپاره الجزایر ته روان شو.

دوږی ۶:
یونان، سعودي عربستان او ناروې د افغانستان نوی رژیم په رسمیت وپیژاندی.

دوږی ۷:
د پخواني مخلوع پاچا محمد ظاهرشاه استعفی نامه چې د روم څخه ئې رالیږلې وه د هیواد په مطبوعاتو کې خپره شوه.

دوږی ۸:
د مزار شریف منورینو او روښنفکرانو او په زرګونو خلکو د جمهوریت په طرفدارۍ مارش وکړ.

دوږی ۹:
په ټول هیواد کې د پښتونستان ورځ ولمانځل شوه.

دوږی ۱۲:
مرکزي کمیټې فیصله وکړه چې د مالدارۍ د تقویې په منظور د خیبر او وردګو څخه ټول رسمي موسسات په هفته کې دوې ورځې غوښه نه خوري.

دوږی ۱۷:
ملي ارشیف پرانستل شو په دې ارشیف کې د احمدشاه بابا څخه د امان الله خان تر عصر پورې اسناد کښیښوول شوه.

دوږی ۱۹:
ښاغلي محمد نعیم د دولت د رئیس او صدراعظم د مخصوص نماینده په حیث شوروي ته سفر وکړ.
اعلان وشو چې د زمري د لومړۍ نیټې څخه د وږي تر ۱۹ پورې ۲۷ ملیونه افغانۍ د دولت باقیات تحویل شول (ټول باقیات یو ملیارد څلور سوه دیرش ملیونه دوه او یا زره او شپږ څلویښت افغانۍ دي)
د مهمند هغه مامورین چې د دولت له ملکیتو څخه یې شخصي استفاده کوله تر عدلي تعقیب لاندې ونیول شول.

دوږی ۲۵:
د بنګله دیش سفیر خپل اعتماد

لیکنه د دولت د رئیس له خوا اعلان شوي
کې د هرات ښاروالۍ په یوه نیمه
میاشت کې څلور ملیونه افغانۍ
باقیات تحصیل کړه د ښار جوړولو او
کور جوړولو د ریاست د پلټنې
کار جاري و.

دوبې ۲۶:
مرکزي کمیټې فیصله وکړه
چې د ۱۲ قرلګیو قارخان دی عسکري
خدمت یو کال وکړي.

دوبې ۲۸:
د عظمی صدارت مرستیال
داکتر حسن شرق د مجنون شاه د
مسجد د بنسټ ډبره کېښوده.

دوبې ۲۹:
ښاغلي محمد نعیم د دولت د
رئیس او صدراعظم د مخصوص
نماینده په حیث هندوستان ته سفر
وکړ. جمهوري حکومت دوې
ابلاغیې خپرې کړې چې په لمړۍ
کې ذکر شوي چې یوه دسیسه کشف
سوه چې په هغه کې د پاکستان
تحریک دخیل دی او په دوهمه
ابلاغیه کې ویل شوي وه چې یو
شمیر ملي خاینان
نیول شوي دي.

دوبې ۳۰:
مرکزي کمیټې فیصله وکړه چې
د امنیت د اخلال کونکي مرتکبین
که عسکري وي که ملکي په عسکري
دیوان حرب کې بې محاکمه
کیږي.

د هیواد په کڅو ګوټونو کې د ملي
خاینانو حرکت وځنډول سو.

د تلې اومه ورځ:
د الجزایر د ناپیلتو هیوادو په جرګه
کې د افغانستان نماینده د ښا په باب
د پاکستان د سفارت یادداښت چې د منځلو
ورته د افغانستان د خوا رد سو.

د تلې ٤:
په سپین زر شرکت کې اور ولګید او
په پلټنه کې د هغه د رئیس ناشر لاس دخیل
وبلل سو.

د تلې ٥:
د دولت رئیس د روژې په احترام
زر بندیان او پنځه زره کسه د مکلفیت
شاقه یان وبخښل.

د تلې ۸:
د دولت د رئیس په هدایت د یو زر کسو
بندیانو دوسیې چې د لسو کالو را په دې
خوا معطلې وې د داخله وزارت څخه د
عدلیې وزارت ته وسپارل.

د تلې ۱۱:
د هیواد په مطبوعاتو کې د ملي
خاینانو اعتراف سندونه خپاره شول
په ټول هیواد کې د ملي خاینانو د څنډو او
هیڅنګو نه روان وه.

د تلې ۱۶:
د افغان فلم لومړی هنري محصول
(د مور نصیحت) د کابل او جلال آباد په
سینماګانو کې د ننداري د پاره وښودل
شو.

د تلې ۱۸:
دیوان حرب په خان اباد کې د امنیت
اخلال کونکي ۱۲ کسه مرتجعین د بند په
بیلو بیلو مودو محکوم کړل.

د تلې ۱۹:
د وزیرانو مجلس د خارجي
فلمونو د تورید فلم اخستلو او
طباعتي موسسو د ایرولو په باب
مقررات تصویب کړل.

د ملمند، کنړ او پکتیا پروژې
د کرنې په وزارت پورې مربوطې
شوې.

د تلې ۲۳:
د ملي دفاع په بلنه د شوروي
اتحاد یو نظامي هیئت کابل ته
راغی.

د تلې ۲٤:
د دولت د رئیس او سرې میاشتې
د حامي په وینا د افغاني سرې
میاشتې هفته شروع شوه.
د افغانستان حکومت د کمبوډیا
د ملي اتحاد حکومت د نوردوم
سیهانوک په مشرۍ په رسمیت
وپیژانده.

د وزیرانو مجلس د کارګرانو
حداقل مزد (۹۰۰) افغانۍ وټاکی.

د تلې ۲۹:
په پغمان کې د جمهوریت
څلی پرانیستل شو.

د لیندۍ اول:
د پولیس او ژاندارم قانون
نافذ شو.

د لیندۍ ۲:
د دولت د رئیس د کوچني اختر
په مناسبت ۳۳۰۰ بندیانو بخښنې
امر صادر کړی.

د لړم ۳:

د ملګرو ملتو د ورځې په مناسبت رخصتي وه.

د لړم ۷:

د هند د پاچا د نیو چارو وزیر کابل ته راغی.

د کانو او صنایعو په وزارت کې د یو شمیر بې کفایته مامورینو لاسونه د کار څخه وایستل شول. د پلټنې په نتیجه کې معلومه شوه چې په سپین زر شرکت کې ۴۴ ملیونه افغانۍ بیله قانوني مجرا څخه حواله شوې وې.

د لړم ۱۰:

د مزار شریف د کوډاو پر ښځو د پروژې د روغتیا تر یو شمیر مختلسینو د بند په بېلو بېلو مودو محکوم شول.

د لړم ۱۲:

د صدارت د پلټنې هیئت ابلاغ کړه چې غیر مستحق کسان باید تر ۲۰ ورځو پورې د مکړ ویان کورونه ایله کړي.

د اطلاعاتو او کلتور وزیر د ملي ارشیف د ښندنې ودانۍ په اساس ایښودونکي کمېټې ته کنځېږ وړاندې کړ. د کندهار د میوې بر یګې په امتحاني ډول کار شروع کړی. په کابل پوهنتون کې د ملي پوهاند قدام تمثیل شو.

د لړم ۱۶:

د کاپیسا د ولایت تشکیل لغوه شو.

د لړم ۱۷:

د پښتو او بلو څو ادبي ستي فرانسوي کمیټې د افغانستان د جمهوریت مبارکي وړاندې کړه.

د لړم ۲۰:

د روغتیا د وزارت هیئت د دواو د بیې ارزاني تصویب کړه.

د لړم ۲۲:

د بند امیر ساحه د ملي پارک په حیث اعلان شوه.

د لړم ۲۴:

د اکثرو ادارو د حکومت د فیصله عملي کړه چې په هفته کې یو ورځ ټول مامورین په ودانیو کې د پاکوالي کار وکړي.

د لړم ۲۵:

د اطلاعاتو او کلتور وزیر د شاه ولایت د مأب په روضه کې د ټولو علماو ځایونو لړی چې د تبلیغ له لارې دین او ټولنه د جمهوریت په استحکام کې لاربندوونه وکړي.

د لړم ۲۶:

د کندهار د میوې په صادراتو کې ۲۸۶۵ ټنه زیاتوب اعلان شو. د یو بنیادي تحول په حیث تصویب شوې چې د یو معنی د لومړۍ درجې او دویم ټولګي شاګردان په اتوماتیک ډول مخته ولاړ شي.

د لړم ۲۸:

۸۴۳ کورنیو ته د ننګرهار په پروژه کې مځکې ورکول شوې.

د لړم ۲۹:

د کندهار د ۲۵۰ بستریز روغتون تیرون د افغانستان او چین تر منځ په کابل کې لاسلیک شو.

د لیندۍ ۱۳:

د پلخمرۍ د نساجۍ په تولیداتو کې دوه چنده زیاتوالی اعلان شو.

د لیندۍ ۱۵:

د وزیرانو مجلس د بلخ او بګرامي د فابریکو پراختیا او په کندهار او هرات کې د نساجۍ د فابریکو جوړول تصویب کړل.

د لیندۍ ۲۰:

د وزیرانو مجلس د اقتصادي عالي شورا تاسیس تصویب کړی.

د لیندۍ ۲۵:

د کابل په پلچرخي کې د دوو زرو ښځو او نارینه ؤ بلون او د لوفابریکه چې په شخصي پانګه جوړه شوې وه په کار ولوېده.

د لیندۍ ۲۶: د چکوسلواکیا سره د شل ملیونو ډالرو پور د تړون وشو.

د مرغومي اوله: پر ملي خاینانو د دیوان حرب فیصله صادره او عملي شوه.

د مرغومي ۷: د جمهوریت ملي سرود خپور شو.

د مرغومي ۱۹: د ملي خاینانو پر دوهمه ډله د دیوان حرب فیصله صادره شوه.

د مرغومي ۲۴: د بند پاتو د صحي حالت د ښه والي په منظور د کندهار په محبس کې یو ۱۰ بستریز صحي سرویس پرانستل شو. د دولتي اطلاعاتو او کلتور د امر اتو سیمینار جوړ شو د غه سیمینار په پای کې د دولت د رئیس او صدر اعظم حضور ته ور غلل.

د مرغومي په دوهمه نیمایي کې د ترافیک قانون نافذ شو.

د سلواغې ۵: د تذکرو وېشل شروع شول. د سلواغې ۷: د مطبوعاتي او د کلتوري جایزو لایحه تدوین شوه.

د سلواغې ۱۰: بې مځکې ۷۴۳ کورنیو ته په ننګرهار کې مځکه ورکول شوه.

د ملي خاینانو پر دریمه ډله د دیوان حرب فیصله صادره شوه.

د سلواغې ۱۴: په کندهار کې زراعتي سیمینار جوړ شو.

د سلواغې ۲۴: د ننګرهار په ماما خېلو کې د تلکو د کان د استخراج مقدماتي کار شروع شو.

د سلواغې ۲۷: په کندهار کې د صنعتي پارک د جوړولو

مطالعات وسول.

د کب اوله: د دولت رئیس او صدراعظم د سل زره تنو د غنمو پوړونو پوروړو وبخښي د غه پور د غنمو په مقابل کې د کار تر پروګرام لاندې ورکول شوی دی.

د کب ٥: په ننګرهار کې د جمهوریت او د سرطان د ٢٦ قار

موته په نامه د دولتي فارمونو کار شروع سو.

د کب ١٦ د عامه کتابخاني په امریت کې د افغانستان پېژندني څانګه پرانستل شوه.

د کب ١٠: د پولي تخنیک فار ـ غان د دولت د رئیس او صدراعظم په حضور د منل سوه.

د کب ١١: په کندهار کښې د جمهوریت د تذکرو وېشل شروع سو.

د کب ١٤: د افغان د رغتیا پروګرام د وزیرانو د مجلس له خوا تصویب سو.

د کب ١٥: د کندهار د سیلو ګانو ژرندي پرانستل سوي.

د کب ١٧: د کندهار د خرقې شریفې نوې دروازه پرانستل سوه د دولت رئیس او صدراعظم د عراق او ایران له مشرانو څخه هیله وکړه چې خپلي سرحدي شخړې په روغه حل کړي.

د کب ١٩: حکومت د واردا تي مالونو د نرخ د استقرار په منظور دزر میلونه افغاني خساره پرځان ومنله.

د کب ٢٢: د مزار شریف د ښار نوی پلان تر تطبیق لاندې و نیول سو.

د کب ٢٦ د وزیرانو عالي مجلس د پنبې په قیمت کې ١٧ افغاني زیاتوب منظور کړ.

د ١٣٥٣ د وري ٢: د دولت د هدایت په اساس د سپین زر شرکت له خوا د ١٧٥٠ زره جریبه ځمکې له پاره پنداني او کیمیاوي سره و وېشل سوه.

د وري ٤: د تجارتي فعالیتو او مقرراتو نافذ سول او د تجارت د انکشاف پروګرام تر تطبیق لاندې و نیول سو.

د وري ٤: د جوزجان د سلفرارونکي ګاز په باب اعلان وشو چې تر ١٣٥٦ کال پورې به کار ورڅخه واخیستل شي د دغه ګاز ظرفیت ٥٠ ملیارد مکعب متره څو د ل شوید ی.

د وري ٦: د کندهار هلمند او فراه د و لایاتو د ٢٠ زره جریبه ځمکې له پاره د پنبه داني او کیمیاوي سري و وېش شروع شو.

د وري ٩: د افغان کیمیاوي سري او د پنبې د شرکتونو تر منځ د ٢١ زره ټنه کیمیاوي سرې تېرونو لاسلیک شو.

د وري ١٠: د کابل پوهنتون په څو کاڼي د و ترانری پوهنځې پیا فعاله شو.

د وري ١١: د موسیقي ښوونځي د پوهنې د وزیر له خوا پرانستل شو.

د وري ١٩: د وزیرانو مجلس د دولت د غلې د کسرا تو مجرا یې په سل کې تر پوه پوري تصویب کړه.

په مستحقو کسانو باندې د مکرویان د ١٩٩ کورونو و یش وشو.

د وري ٢٦: په کندهار کې د سري میاشتې د لومړي پومرستو مرکز پرانستل شو.

د وري ٣٠: د جغندرو په هرسورت کې د رانیولو پرو خت ١٩ افغاني زیاتوالی حکومت منظور کړ.

د غوایي ٤: د دولت د رئیس په لارښوونه د کوچنیانو ٣٠٠ کورونه د هلمند په ناوه کې ځمکې ورکول سوي. د ولایاتو د مامورینو ښوونکو د کار ګرانو اجیرانو او مستخدمینو له پاره داوړه و کوپون منظور سو.

د غوایي ٦: د وزیرانو په مجلس کې د باقیت دواوو پرځای د جنریک دواوو تورید منظور سو.

د غوایي ١١: په قول هیواد کې د کارګرو ورځ ولمانځل سوه.

د غوایي ١٣: د ننګرهار د ماخیلو د تلك له کان څخه ٣٠٠٠ ټنه تلك صادرېدو ته چمتو سوه.

د غوایي ١٥: د مېیو د حلالولو د مخ نیوني په اثر اعلان وسو چې د قرقل په پوستکو کې (١٢٠٠٠٠٠) پوستکي زیات سوه.

د غوایي ١٧: د هلمند په ناوه کې ٤٠٠ بې ځمکې کورنیو ته ځمکې وو یشل سوې.

د غوایي ١٩: په قول هیواد کې د جمهوریت ملي بیرغ ورپول سو له دې سره سم د بیرغ قانون نافذ سو.

د غوایي ٢٢: د لیکه اولوست دزده کړې د ساحې د پراختیا سیمینار د پوهنې وزیر پرانست.

د غوایي ٢٨: مرکزي کمیټې فیصله وکړه چې هر مامور او کارګر دی په هفته کې ٤٠ ساعته کار وکړي.

د غوایي ٢٩: د ننګرهار په ناوه کې ٢٢٧ کورنیو ته ځمکه ورکول سوه.

په قول هیواد کې د ښوونکي ورځ ولمانځل شوه.

د غبر ګولي اوله: د دولت د رئیس په امر یو ملیون افغاني د ولایاتو د بې وزلو ښوونکو سره د مرستې په توګه منظور شوي.

د غبرګولي ٣: د مزار شریف د حرارتي برېښنا د ریم تور بین د ١٢ زره کلیواټو په ظرفیت په کار واچول شو.

د غبرګولي ١١: د داخلي او خارجي خصوصي پانګې اچولو د نوي قانون مسوده منظور سوه.

د غبرګولي ١٤: د دولت رئیس او صدراعظم د شوروي اتحاد د دولت په بلنه هغه هیواد ته د ښه نیت سفر وکړ.

د غبرګولي ٢٠: اعلان وسو چې شوروي اتحاد د افغانستان په ٢١ پروژو کې اقتصادي او تخنیکي مرسته کوي.

د غبرګولي ٢٦: اعلان وسو چې د کرني د یو شمېر پروژو په تکمیل په ١٦٢٠٠٠ جریبه ځمکه نوې ابادي سي.

(پاته د پښتې په دریم مخ کې)

د راشد لیکنه

# د جمهوریت لومړۍ کالیزه

د سرطان د میاشتې ۲۶ نېټه یا زموږ په هېواد کې د جمهوریت د اعلام ورځ هغه تاریخي او ارزښتناکه ورځ ده چې افغان ولس به یې د خپل تاریخ په اوږدو کې په قدردانۍ سره یادونه کوي لمانځي به یې او ددې ورځې احترام به کوي.

سږ کال د سرطان ۲۶ نېټه چې یو کال د جمهوریت د لومړۍ نه ورځې څخه بیا ترن ورځې پورې تېر سوی دی په هغه ورځ زموږ په ګران افغانستان کې یو لوی انقلاب او یو ستر سیاسي بدلون راغلی دی چې ددې بدلون څخه غرض او مقصد هېواد نجیبو خلکو ته صادقانه خدمت کول دي او د خلکو د اکثریت برخې هغه مشکلات چې په اقتصادي، سیاسي او اجتماعي ساحو کې ورسره مخامخ دي لیرې سي. ځکه د غه مشکلات د پخوانیو ناوړه و شرایطو په سبب منځ ته راغلي وه. او ګران وطنوال خبر دي چې په هره برخه کې د خلکو مشکلات او ستونزې دې اندازې ته رسیدلي وه چې نور نو د خلکو سره د هغو د زغملو توان او طاقت نه ؤ او په هېواد کې د دغو ناوړه و شرایطو څخه وطنپرسته افغانان تر دې اندازې په تنګ راغلي وه چې نور نو وجدان اجازه نه ورکول خو د هغو په مقابل کې چپه خوله ونیسي هغه ؤ چې زموږ فداکارو، میړنو او پر هېواد مینو وطنپرستو زموږ د انقلابي مشر د دولت د رئیس او صدر اعظم ښاغلی محمد داؤد په لارښوونه د زاړه نظام د چپه کېدو او پر ځای یې د جمهوري نظام د منځ ته راوستلو د پاره اقدام وکړ. دوی د افغانستان د ملت په قوت بنا اراده او په هغې به سر ښندنه فداکاري او بشپړه ایثار سره په دغه ستر تاریخي اقدام کوټې پورې کړي او ددوی ددې فداکارۍ، مېړانې سر ښندنې او ځان قربانولو په نتیجه کې په هېواد کې د جمهوري نظام اساس او بنسټ کښېښول سو.

موږ ددې بختورو ورځو په مناسبت د ملي انقلاب ستر لارښود د هغو فداکارو ملګرو او افغان ځوانانو، ورار دو ته د زړه له کومې مبارکي وایو. جمهوریت یو ستر ملي ارمغان او امانت دی چې د تاریخ پاڼې به یې په خپلو زرینو کرښو کې د ابد د پاره ژوندی وساتي. دا هغه اساس دی چې زموږ د ملي مشر په حکیمانه لارښوونه د هېواد د آبادۍ په خاطر کښېښودل سو څو اوسني او راتلونکي نسلونه یې د مزایاؤ او ښېګڼو څخه برخوردار وي.

لکه څرنګه چې په دغه باب زموږ انقلابي ملي مشر د جمهوریت د اعلامیه و په لومړۍ ورځ په خپله تاریخي وینا کښې داسې فرمایلي دي:

«د وطن د راتلونکې نیکمرغۍ د پاره مو د جمهوریت او واقعي او معقولې دیموکراسۍ په اساس چې د افغانستان د خلکو اکثریت ته پر خدمت بناوي بېرغ اوچت کړ، د خلکو د پوره حقوقو د تر سره کېدو او د ملي حاکمیت په اصل باندې د پوره اعتراف په لاره کې مو د لوی خدای په مهرباني ګام واخیست»

هر کله چې د جمهوري نظام څخه د مخه په لس کلنه دوره کې د هېواد اقتصادي، اجتماعي او سیاسي حالت د بحران سره مخامخ ؤ نو د دغه حالت څخه د ژغورلو په مقصد د هېواد د ابادۍ، ترقۍ او نیکمرغۍ په خاطر د سرطان په ۲۶ نېټه جمهوري نظام اعلام سو. د هغې ورځې څخه بیا ترن پورې چې پوره یو کال تېر سوی دی، په هېواد کې په اقتصادي اجتماعي او سیاسي ساحه کې پراخ او اوچت ګامونه اخیستل سوي دي.

په هېواد کې د ملي اقتصاد د پیاوړي کېدو په خاطر، د کرنې د ښه تر انکشاف په غرض، د اوبو د منابعو څخه د ښې استفادې په

«پاته په ۲۹ مخ کې»

د وجدي په قلم

# فولکلور د ژوند د واقعیتونو ترجمان دی

فولکلوري اثار د ټولو جوامعو په تیره بیا د هغو ټولنو له پاره چې د تکنالوژۍ او اقتصادي پرمختګ ساحه په کښې محدوده وي په هر لحاظ خورا اجتماعي تحول ته وي یې کښې پیش کړي دلته

فولکلور د کلچر له مهمو اجزاوو څخه شمېرل کېږي.

څومره چې پرمخ تللي جامعې د نوو تکنالوژیکي پدیدو له پاره نومونه، مفاهیم، تعبیرونه اصطلاحات حتی تشبیهات او استعارې لري په هم هغه اندازه په مخ په انکشافو ټولنو کښې د طبیعي پدیدو د تولید د بسیطو وسایلو اجتماعي عواملو شعائرو، اندیښنو او محرومیتونو د معرفي او ترجماني له پاره نومونه اصطلاحات تعبیرونه تشبیهات او استعارې او داسې نور شیان موجود دي چې هغه د سندرو، قصو متلو او نورو فلکوري اثارو په مطالعه کښې ځان ښکاره کړي. په دې اساس فلکور د خلکو په پېژندنه کښې له ټولو ژیکو مطالعاتو نه کم لاس نه لري.

د سوسیولوژي د پوهانو له نظره د فولکلور اصلي او عمده رول دا دی چې هغه د یوې طرز تفکر بقایا په متمدنو ټولنو کښې ځرګندوي

په دې اساس که چېرې د ژموږ پښتني ژوندانه او ثقافت د فولکلور په هنداره کښې وګورو نو ځرګنده به شي چې ژموږ کلچر تر ډېره حده په ماوراءالطبیعي عواملو متکي دی. کله چې موږ ماوراءالطبیعي عوامل یادوو نو باید دا ټکی هم روښانه کړو چې همغې داسې شیان هم په ماوراءالطبیعي عوا- ملو کښې راځي چې د عامیانه استدلالونو او تعبیرونو له مخې هغه د خلکو په سرنوشت کښې اغېزه لري غالباً د هغو راز تعبیرونه د اساطیرو (میتولوژي) د دورې له بقایاوو څخه ګڼل کېږي.

د مثال په توګه اوس هم داسې زړې ښځې سته چې د برق تر رڼا لاندې د سرشکانو (شرې) د ناروغۍ عامل (د شرې ادې) روح ګڼي د هغو راز ښځو وایي کله چې د شرې ادې او ورو ته وتوځي نو ډېر خلک د شرې په ناروغۍ اخته کېږي.

له دې خبرې څخه معلومېږي چې ژموږ کلچر د ماوراءالطبیعي عواملو په لړ کښې د میتولوژیکي طرز تفکرونو څخه هم په زیاته اندازه ترکیب شوی دی او د افغانستان د پښتنو اساطیرو او ادیانو بقایاوو تر اوسه پورې یې کښې ځای نیولی دی.

د تاریخي حقایقو له مخې پښتون ولس د لوړو غرونو حصارونو او له نورو ولسونو څخه تر زیاتې اندازې په جغرافیایي او اجتماعي انزوا کښې ساتلی دی نو ځکه د دوی کلچر نسبتاً زیات سوچه ساتل شوی دی او د غرونو حصارونو د دوی په تخیل او طرز تفکر هم پوره اغېزه کړې ده. طبیعت دوی مجبور کړي دي چې له خپل محیط سره توافق وکړي تر دې چې دوی ته د غرونو حصارونه هم په ښکاره شوي دي لکه چې وایي:

په لوی پو غرو د خدای نظر دي
په سر یې واوري په لمن یې ژېړ ګلونه

د جوامعو دینامیک حرکت سکون او جمود ته خو چېرې نو ځکه د غرونو د حصارونو کښې په احاطه سوو خلکو کښې داسې خیال او ارزو هم پیدا کوي چې:

خدایه دا پوري غر سوري کړې.
چې تر ښکاره شي زما د یار د باغ ګلونه.

«پاته په ۲۵ مخ کې»

د انګلیسی منابعو څخه:

د (م ان) ژباړه

# سیاحت د یوی تعلیمی برخی په حیث

د (ستړ کوا وې ستړ کو) په
نامه یو شکل دی چې وایی د
څروانې څوملو کان وه، دوی په یوه

ورځ مګر پر مځکه او ځنو
په وطن ته ورغله، کله چې د هغه
وطن له خوا بیرته راوګرځیده

نو دوی معلم د دری د لیدنو او
کتنو په شاوخوا کښې پوښتنې
ځنې شروع کړې یوه ملک په
جواب کی ورته وویل چې
ما کم شی هلته نه ولیدی بلکه هغه

زوړ چکر می وواهه. دا بل ورته
وویل چې ما یو مقدار عجب عجب

شیان ولیدل له دوی د انی می
بیابانی ګل ګلا چونه په لاس
کښېوته او څودانی می نوی نوی

رقم کچلانی و لیدلی د هغه رنګه
می یوه جوړه چوغکی په ستړګه
سوی چې خپله ما لی یی جوړوله

او خلکو په دود کی ما هی ګرځی
کوله او همدارنګه می ولیده چې
وګړی د باد په زور زړ ندو خپله

غله اړوه کوله له دی قبیله د پر
شیان هلته زما تر نظر تیر سوه.

د دی دوو ملوکانو ترمنځ صرف
فرق داسی ؤ چې یوه له ستړګو
څخه کار اخیستی ؤ، او هغه بل

خپلی ستړګی په کار نه وی اچولی

سیاحت هم کټ مټ د غسې مثال
اری د دی د پاره چې په یوه خارجی
مځکه کښې د سیاح پر تعلیمی وضعیت

باندی سیاحت اثر واچوی او تعلیم ته
ی زیاتوب ورکړی تو په کلی ډول
سره دا خبره په خپله په سیاح پوری

اړه لری د ستړ ګو څاوند کولای
سی چې هلته زده کړه وکړی او په
داسی حال کښې بیرته راو

ګرځی چې ذهن ئی انکشاف کړی
وی بې ستړ ګو څوک نو چې هر
څو نه چې بری. مځکی وغوایی او

په زیاتو ملکو کښې وګرځی څو نه
څه لیدلای سی او نه څه زده کولای
سی.

په او سنیو ونتو کښې چې ژر
او په استراحت سره سیاحت کیدلای
سی نو بیر له پوری خلک چې وس لری

یو څه سیاحت کوی دوی نو ځان
داسی ښکاره کړی چې په هر څه
پوهیږی او دنیا یې ګرځدلی

د او هغه څوک ز ده سوی بولی
چې خوارو ی او تر ګورنه وی
و تلی مګر حال دا دی چې د دوی

څخه که د لیدنو او کتنو په باره کښې
پوښتنه وکړی نو اکثره ئی داسی

دی چې څو را لږ څه بیان په لری چې
ورته وېی کړی سره له دی چې دوی

په ایټالیا، جرمنی، فرانسه لیدلی وی
په نیو یارک او یو کاهاما کښې به ئی
شپی تیری کړی وی لیورپول او استرالیا

ته په ورغلی وی اماداسی به لیده کیږی
لکه هیڅ چې ئی نه وی لیدلی چې د هغو
په باب کښې بیان ورته وکړی.

د غسی سیاحت او ګشت له تعلیمی
نقطه نظره څخه چندانی فایده نه لری
او نه د سړی پر ذوق باندی کم تاثیر نه

کولای شی.
که تاسی غواړی چې تعلیمی سیاحت
وکړی نو باید چې ستړ ګی خلاصی وساتی

او پام مو بیدار وی مثلا تر مخه تر دی چې
وایټالیا ته ورسی باید چې تر ممکنی
اندازی پوری د هغه ځای او د هغه ځای

د خلکو په باره کښې لوستنی وکړی
او د هغه پر مهم او په زړه پوری شیان
وځان ته معلوم کړی چې هلته باید

وکتل شی.
نو کم وخت چې هلته ورسی، نو په هغو
ځایو یی ی تلاښ وکړی چې لیدنه ئی

غواړی له ستړ ګو څخه کار واخلی
غوږونه خلاص وساتی او د خلکو

سره وږ غیږی او زده کړی ځنی

ز کړی په داسی ډول په نو
«پاته په ۱۱ مخ کی»

د(م-ع) لیکنه او تتبع

# د بشري تاریخ یوه ډیره زړه پاڼه

## مصر د زاړه لیك په باره کښې د فرانسوا شامپولیون

### د تحقیقاتو مثبت نتایج

په زرهاو کلونو ترمخه مصر یو ډول لیک درلود چې هغه ته ئې (هیروغلیف) وایه او د مصر ۶۰۰۰ کلن مدنیت کیلي هم د غه لیک بلل شویدی.

فرانسوا شامپولیون یو فرانسوی مصرپوهاند چې په علمي تنده سره ئې د مصري مدنیت د معلوماتو له پاره کار ته لاس وراچاوه او پسله یوې سلسلې تحقیقاتو څخه په هغو رمزو باندې پوه سو کوم چې پرزړو لوحو لیکل شوي وه، او هغه ئې ولوستلې چې د مصر هغه زړې لوحې یې ولوستلې کوم چې په درې ډوله لیک سره مشهوره ده تر دې وروسته په دغه تاریکه لار کښې قدم وهل تر یوې اندازې پورې اسانه سوه او تر ده وروسته پر دغو مسایلو د بحث دروازه خلاصه سوه.

د (شامپولیون) پوښاګرد چې (ژوژه) نومیدی په ۱۷٦۰ کښې اعلام وکړ چې اوس په مصر کښې داسې لیک نسته چې هغه دې و نه ویل شي مصر په خپلو ژبو دوړو کښې چې کوم لیک درلود هغه هیروغلیف نومیدی او دا لیک به پر هغه کاغذ لیکل کیده چې (پاپیروس) نومیدی، د دې لیک ترتیب دا وچې د خپل مطلب د اظهار له پاره به ئې د ټولو شیانو تصویرونه لیکل او دا تصویرونه به په مخصوص ډول سره یو ځای کیدل او جملې به هغې جوړیدلې.

دا لیک د هغه وخت د مصر پادو اختراع ده او د نړۍ خورا زاړه تاریخ پوهان وایي چې دا د نړۍ لومړی لیک دی او هغه زاړه تاریخي وقایع چې موږ ته را رسیدلي هغه د دغه لیک په زریعه دي.

د دې لیک وخت په معین ډول څوک نشي ټاکلای خو په قیاس سره دا ویل کیږي چې شاوخوا له نن څخه په ٦ یا ٧ زره کاله دمخه دې لیک رواج درلود څکه د مصر د څلورمې پاچهی کورنۍ د یوه پاچا پر قبر یوه ډبره پیدا شوه چې پر هغه به نوموړی لیک لیکل شوی وه چې (په خاورو کښې پروت ګولواك په ژوند کښې د یوې لویې کتابخانې د لوستونکی ؤ)

نو د دې څخه دا څرګندیږي چې د نوموړي ګولواك څخه تر مخه هم په دغه لیک کتابونه لیکل سوی وه او تاریخ چې موږ ته د دې ګولواك د ژوند نیټه معرفي کوي هغه د میلاد څخه د ٤ زرو کلو په تر مخه زمانو پورې اړه لري. په متوسط ډول سره که د غه لیک ته له نن څخه ٦ یا اوه زره کاله دمخه وخت ورکول سي د حقیقت څخه به لیرې والی نه وي.

د مصر پر نورو ژبو قبرو مخصوصا د اهرامو پر دیوالو د د قبیله ډیرې لیکنې سته چې هغه د مصر پوهانو له خوا ولوستل سوې او د (هیروغلیف) د لیک کیلي هم جوړه سوې ده نن چې کوم څوك د مصر په زاړه تاریخ کې پلټنه کوي د هغه د پاره خورا ډیر وسایل سته خو تر ټولو مهمه د (هیروغلیف) د لیک کیلي ده.

دا کیلي فرانسوا شامپو-لیون ترتیب کړې او د نړۍ په ټولو علمي محافلو کښې منل سویده.

---

(د ۱۰ مخ پاته)

**سیاحت د بوی...**

صنایعو ته او له وخت ژده کړه و ایسی او کم وخت چې کور ته راستون شي نو به ټاسې خپل وطن په یوه نظر و وینئ (کپلنګ) په دې باب کې ډیر ښه ویلي دي:

«هغه څوك انګلستان څه پیژني چې یوازې د انګلستان نوم پیژني.»

د بزگر په قلم

# مجیدا کا

دې د ژوند لاروچارو داسې کړی و چې په ځوانه ځوانۍ يې سپین ږیری کړی و. د مجیدا کا عمر

د پنځه دېرشو کالو و چا چې به لیده نو دا یې خامخا ور ته ور تېرېده چې عمر به یې د (٦٠) یا (٧٠) کالو په شاوخوا کښې وي.

دده پراخ تندی او پر داسې کونجې کونجې سوی وه چې د پېژندلو وتلی وه، خو سربېره پر هغه یې هم د کاره لاس نه اخیست او تل به یې کار کاوه.

یوه ورځ داسې پېښه سوه چې سهار وختي یې یوه پر اوږه و په لار کې زما سره مخامخ سو کله یې

زه یې ولیدم نو سمدلاسه یې راته وویل «بوقو له په بوڅای سره څو» ددوی د میاشتې سره قرمه ور د دلوی

دښت په منځ کې شاوخوا تر څو پره حده ماخوا ته د ونې نه معلومېدې.

موږ دواړه د زوړ انو په هلو بوخت و. کله چې په مر مجیدا کا ته ورناري کړه چې «هاو راسه بوقی دی، کړه کې راو اخله» نو ده په ځان راو دساوه.

یو کړی وروسته کله چې زه پر بوقي پېښ سوم نو مې ورناري کړه.

«راسه دا بوقي هم یو څه څپ دې زړ کوه...» دده مې یوم په لاس کې او د زوړ انو هلو ته یې تیار کړې وو زما

د مخ داور پدئو سره سم یې زوړ پرېښود، کړه کې ته یې لاس کې او زماو خوا ته را دمې شو.

کله چې ر دې بوقي ته راو رسېدی نو ماته یو څه راڼ ژدی شوما یو څه کړې په څیر څیر ور ته کتل وروسته مې دیامه

تیره خوا بوقي ته ور څرمه کړه ده ته مې مخ ورواړوي او ورته ومې ویل «رښتیا وائي مجیدا کا داسې څه ولې د کلي

خلک بدوړي او تا ظالم بولي».

ده مخ راواړوي او یو وار یې په سر سري نظر راته وکتل د تندي ګونځې یې

یې په کوتوا یسته کړې یو سوړ اسویلی یې وکیښ او په داسې حال کې چې په کار اخته و خبرې یې شروع کړې:

یا... هیڅکله زه د خلکو بدنه ایسم خو که مې رښتیا ویو پښتی نو د یو څو تنو بدراځي یو د جمال خان اکا...

ولې چې زه یو لږ څه مځکه لرم او که یې د محصول سره یو څه پور ودار وکم نو په مځې تر کال مې وباسي او د هوده

مځکې ته اینګلی دی. څو خامخا یې پر څه کړم په هر چم چې وي

زما د لاسه یې واخلي نو په دغه سبب تودې کوتي رابورې مو څه دي او په بدو نومونو مې بولي.

بل که درته ووایم د ملا شینکي دي د لیکي صدت داود سېنزي پر تې بدراځي وام وروده

که مې توم ورواخي وایي «مخ دې پر تئسو چ.ر خبیث دې»

تا تو پوښتنه نه کړه بې وا ای

د خان اکا به در څه ور اځي؟

خوزه به درته ووایم د خان امې

د رخلاصه کړه چې د مځکې حصه

دونه ده چې زړ وده یور وکم تر

کال به مې وباسي نو دغه مې حال

دي....

ده زما خبرو ته سترګې دوي

نیولي او وچ راته ولاړ دی چې بس

نو را کوه بې.

چې برو خت مې دی اندازي ته

ور سوی چې من او تر اخو یې د خان ته

سره دا ودي وي او په زور به یې

را څه اخلي.

نو که ورته وایي چې زه پخپله

لو بدلی یم... نو پر سری تودې

خبرې کوي.

ګرمي یې حده چېرو وه د ده یو

لږ ګړی له پارسه وا چوله خو دګرمي او د ډېر کار له سببه یې ټول بدن او نه خیشت سوی

و تردې اندازې چې د مخ خولې ئې څڅېدلې پر مځکه تو یېدې ده بیا د تندي خولې په ګوته ټولې

او هسته ئې و پاشلې، پسله لږ څنډه وهابل برڅی ته ورنږدې شو په داسې حال چې پر ارمانجنه

بڼه ئې د بیابان خاورې او دوړې لوېدلې وې له بوی ارامي خندا سره یې راته وویل:

الا ... پاره اوس چې او بوڅه سوږ سکځ او شلومبې وای نو مو د خدای په ارمان نه درلودې. هوا ماخو ها بله کیسه درته منځلولې وه.

په دې وخت کې ئې بڼه ډېره ژړه غوڅونې شوله پرما ئې لاهم تاثیر وکی او پر خپله پوښتنه پښیمانه شوم.

او په دغو شیانو چې ما درته

وویل د یو څو کسانو بدرانځه راځی، هو ادمغه چاچې زما په تاوان خوشاله وی.

بل تا و یل چې ظالم دی یو لی او د اخو تر ما تا ته ښه معلومه ده چې رشتیا ده او که نه؟

پر ما هم یو عجیب ژوند تېر شوی دی، ښه به نه وی چې یو دوی پېښې ئې داسې سر سره کې درته بیان کم.

په هغه وخت کې لا ته کوچنی وی په یاد به دې نه وی، زموږ د کلی د دکاندار غلاو شو.

ولا کله‌می رګک لا به اګاه ؤ چې ملکک دا غی او دکوره ئې لاس تړلې دا وایستم او حاکم ته ئې بو تلم. دوری

او هیسته ئې کړم ښه ئې پوره پر ښاله کړم، وهل او کوټل ئې را کړه. مګر هغه نه ؤه راجوړه او زما بېګناهي ور ته ښکاره شوه.

بل وخت بیا په کلی کې د بلال جان اغا کور غلو وراهه غله و لاړه او سهار

وختي ئې بیا زما سره ټان راتې لی وه ... د سپین ږیرو مرکې ته ئې ور ووستم ټولو راته وویل چې مه کوه

دا دی دوهمه پلاغلا ده، بیا به لکه اوله پلا بندي شې؛ که دی هغه په یاد وی نو اوس لا شیان را وړه ... داسې مه کوه ...

دژړه می شرک شو، چې بیا لکه چې د غلا پر که در باندې را غله ....

او ډېر به می سر ټوټن کړی ئې؛

د دې پلا ئې بیا هغه لاری چاری را باندې را وسټی لکه د مخه چې ...

مګر ښه می تر د مخه پوښتنې پروړه دا خو

لاما دخپل ژوند ترخې نه دی در ته ویلې دا نو دادم خان تګل دی.

دا ولې ئې هر وخت پر ما باندې غلا

تاوانو له؟

نور خوک نو په دنیا کې نه و، چې بر ما ئې تاوانو له؟

ډېر وه ... خو په هغو کې زه بې وزلې په نظر ور تلم. دا سمانه به ټکه را ایله شوه زما پر سر به وښتله ....

یو متل ئې کړی دی چې وایی ډېره دیټیم د سره نه چیچېږی نو موږ ئې هم بیچاره ګان ولیدو او هم بې واسطې ...

ولې به زور نه را باندې تماموی او

ولې به د ظالم نوم نه را باندې یادوی؟

حق ئې دې چې ما ظالم و بولې

او خپل ځانو نه عادل ....

موږ په دې وخت کې ډېر مجلس کړی و.

وخت هم ماپښین قضا و څکه نو په دوا ړو مو د ډېر بکړ و بوټو په ټولو لو شروع وکړه.

پسله لږ وخته مو پاروته وتړل

په شا مو کړل پر لاری مو دو نه

خبری و نه کړی. کلي ته را و

رسیدو د خدای په امانی مو سره وکړه زه پر پله تیر شوم او ده د

او بوزی و اخیستی.

(پای)

## زموږ د ملي رهبر

### دقیمتي ارشاداتو څخه

دملي ګټو سم تحلیل او پوره تشخیص د نظر او عمل د یووالی تأمین او له ټولو نه مهم د یوه ملت نه ماتیدونکی هوډ کولای سی هغه خپل هدف ته ورسوی او پایې ئې ترلاسه ور لوړی کړی



یوه ملت چې لوی یې د خپل تکامل په لارکې ګام ایښی وي او تر او سه لا لوی مسئولیتونه په مخکې لري د هغه مقصد ته رسیدلو لومړی شرط دادی چې خپلی نیمګړ تیاوې وپېژني او ورو ستیه بیا د هغو په سمولو کی زیار و باسی.



# د تاریخ یوه گوښه

د پوهاند عبدالحی حبیبی لیکنه

# په اتلسمه او نولسمه پېړۍ کې د افغانستان ځینې علمي او ادبي کورنۍ

کله چې احمدشاه بابا په ۱۱۶۰ هـ کال د کندهار په شېر سرخ کې د لویې جرگې له خوا په پاچهۍ انتخاب سو، نو ده ته یو پاشلی او غیر متحد او خراب مملکت سپارل شوی ؤ.

افغانستان د هرات د تیموریانو تر زمانې را وروسته دوه سوه کاله د بېجابود تاخت و تازهای ؤ

او داسې یې خپل قدیم عظمت او مرکزیت بایللی ؤ چې پر څو ټوټو وېشل سوی او د ملوک طوایف په لاس او دا وړه حکمرانۍ هم روانه وه.

په داسې حال کې نو علم او ادب هم مړاوی کړی او فرهنگ

او ادب ته د چا پام هم نه وی. په دغو دوو پېړیو کې د افغانستان خلک د شرقي او غربي او شمالي قواوو

سره په جنگ اخته وه، د وی خپله آزادي ساتله او په دغو وختو کې د روښان، خوشحال، ایمل

میرویس او شیرخان غوندې ملي غورځنگونه د پردو په مقابل کې پېښ شوي دي.

داسې ښکاري چې په عین دغه حیاتي جنگ کې د خلکو علمي او ادبي

او فرهنگي ذوق کور ټپه نه ؤ مړ، ځکه چې د روښان او خوشحال د جنگ پر میدان هم قلم چلاوه او ادبي

کورنۍ یې جوړې کړې او بیا چې د هوتکو په زمانه کې شاه حسین هوتک لږ څه آرام پیدا کړی نو

موږ گورو چې د تاریخ په پاڼو کې دده دربار یو ادبي انجمن وه. احمد شاه بابا هم په خپله

باذوقه او ادیب سړی و، له تصوف سره یې ډېره لېوالتیا درلوده او په پښتو د شعر دیوان لري، دده

زوی تیمورشاه هم د دري او پښتو دیوان جوړ کړی او شاه شجاع په دري د شعر دیوان لري. شهزاده

عبدالرزاق د شاه زمان زوی او شهزاده نادر د شاه شجاع زوی او یو څو نور د احمد شاهي کورنۍ

شهزادگان په دري ژبه هم شاعران تېر سوي دي.

احمدشاه بابا ځینې علمي کورنۍ په خپل مملکت کې ورووزلې چې تر ده وروسته دغه کورنۍ ډېرې ادبي او علمي

او سیاسي کارنامې لري چې دلته زه یو څو علمي کورنۍ درښیم:

د کندهار په بارکزو کې د خانعلوم یا خانملا کورنۍ چې د قاضي القضاتۍ منصب د استقلال تر جنگه پورې په دې کورنۍ کې وا او په هغو وختو کې د اوسني

وزیر عدلیه په څېر ؤ. په دې کورنۍ کې عالمان، شاعران او لوی قاضیان پیدا سوي دي مثلاً ملا محمد سعید بارکزی

د شاه محمود سدوزي قاضي القضاة ؤ چې دده زوی خانملا قاضي عبدالرحمن خان د بارکزو په دربار کې دغه منصب درلود

او د (نصیحة المؤمنین) په نامه یې یو کتاب تألیف کړی دی.

دغسې هم خانملا قاضي عبدالسلام د محمد سعید زوی د امیر شیرعلي خان په دربار کې قاضي القضاة ؤ چې دده په تشویق امیر محمد عبدالقادر سلیمان خیل زوی د امیر شیرعلي خان په نامه رسالة الدافعه تألیف کړه.

بله علمي کورنۍ د ملا اسماعیل الکوزي وه چې د نادر افشار معاصر و، دده کورنۍ په احمدشاهي دربار کې معززه وه. او زوی ئې ملا احمد د معقولو او د منقولو استاد او د قندهار د ښار لوی قاضي و چې بیان الواقیه لطوایف الصوفیه تعلیم السلوک کاشفه او فاروقیه یې تالیفات دي. د ربیع الثانی په شپږمه په ۱۲۳۳ کال وفات سوی. دی او ده ورور ملا پیر محمد هم د قندهار مشهور عالم او مولف و چې یو کتاب یې د (عقیدة المشایخ والعلماء) په نامه په عربي ژبه کښلی دی.

د قاضي غلام محمد هوتک کورنۍ هم په قندهار کې مشهوره وه او دی د ۱۲۵۹ ه په حدودو کې د قندهار لوی قاضي و چې په ۱۲٦٤ ه کال ئې ارشاد الحق په عربي ولیکی. دده زوی ملا عبدالاحمد هم دانشمند سړی و او کله چې سید جمال الدین افغاني په قندهار کې و نو ئې له دی عالم سره آشنایي درلوده او پخپلو یادداشتو کې ئې نوم یاد دی.

بله علمي کورنۍ د محمد نور بن محمد حسن ترخي وه چې د اسید د شاه فقیر الله جلال آبادي شاګرد و او په ۱۲۳۰ ه ئې د جامع السلوک کتاب په عربي کښلی دی دده اخلاف په قندهار کې د قرآن په تفسیر مشهور دي.

د ملا بابې مسه خیل کورنۍ هم د هوتکو له زمانې څخه په قندهار کې مشهوره وه چې زوی ئې ملا فیض الله د منطق یوه رساله په عربي کښلې ده او بیا نو دده زوی علامه حبیب الله محقق قندهاري خورا لوی عالم و چې ۳۳ جلده کتابونه یې په عربي، دري، پښتو په ریاضي، منطق اصول فقه، حدیث، تاریخ، تصوف اخلاق او نورو مروجو علومو کې تالیف کړي دي او تر ده وروسته مولوي عبدالرحیم د امیر شیرعلي خان په دربار کې او بیا دده زوی مولوي عبدالرؤف د امیر عبدا- لرحمن خان په دربار کې ملای حضور و او ددې کورنۍ نور پوهان تر اوسه پورې هم ډېر تالیفونه او علمي اثار لري.

د علامه ملا میرزا کورنۍ چې احمدشاه بابا هرات ته راوست او د بای حصار مدرسه ئې ورو سپارله او وروسته ډېر علما او مدرسان څخه راووتل مخصوصاً ملامحمد عمر د محمد ایوب زوی د ملا میرزا لمسی کیدی خورا مشهور عالم او مولف و چې دده له تالیفاتو څخه (الملهم) په اصول فقه کې مشهور دی. ملامحمد رفیق سلجوقي د محمد صدیق زوی هم یوه نحوي رساله تالیف کړې ده او محمود مشرف او خلیفه محمد حسین خوش نویس هم ددې علمي کورنۍ یو مشهور سړي وه او تر اوسه لا هم دا د دغه کورنۍ نکې خلیکوال، پوهان او هنرمندان لري.

د افغانستان بله مشهوره علمي کورنۍ د پېښور قاضي خیلان دي چې اخوند ترکمان د تاج خان زوی د قندهار له غوندي مرغي څخه د پېښور ته راغی او دده زوی ملا محمد غوث د احمدشاه بابا له خوا د پېښور لوی قاضي و چې د منطقو پر میرزاهد شرح لیکلی او بل کتاب د شرح الشرح په نامه لري چې د احمدشاه بابا عیني عرفاني اقوال ئې د تصوف په رڼا کې شرحه کړي دي.

دده لمسی عبدالکریم د دادالله زوی د نصاب التوحید مولف او قاضي محمد حسن ملقب په خان علماء سردار پاینده خان د کورنۍ استاد او د شاه شجاع وزیر و او قاضي علامحمد دده زوی په دري او عربي د شعر دیوانونه لري او په عربي ئې ډېر کتابونه په فقه او حدیث کې تالیف کړي دي. بل مشهور سړی قاضي عبدالقادر د قاضي حسن لمسی دی چې د امیر شیرعلیخان د دربار عسکري سرمنشي و او د عسکري قواعدو کتاب ئې په پښتو او دري له انګریز- ي څخه ترجمه کړی او د کابل د شمس- النهار په مطبعه کې ئې چاپ کړی دی.

د هرات د برنابادي میرزایانو کورنۍ هم د سدوزو د عصر مشهوره ادبي او اداري کورنۍ ده چې میرزا ارشد د خواجه محمد صلاح زوی متخلص په پاس د هرات د ابدالي دربار سرمنشي او خطاط و دده د دیوان خاوندي یو مثنوي (دابر ګهربار) په نامه هم لري. او میرزا ابوطالب

«پاته په ۲۰ مخ کې»

# دجمهوریت دلاری قهرمان شهید ته

دجمهورۍ دښکلې لارې قهرمان شهیده
ستا تر سپېڅلې قربانۍ سمه قربان شهیده
ستا په سرو وینو کلمه دجمهورۍ وکښل سوه
تاگران هیواد ته دا ووړ ښکلې ارمغان شهیده

زلمي افسره ستا به ځوانو ارزوگانو قسم
یو به تر پایه ستا پرلار باندې روان شهیده
ستا سرلوړی ته هر ځوک سر په درناوی ټیټوي
ستا په ایمان باندې ځوانان لري ایمان شهیده

ستا ارمانونه به موږ هم په قربانۍ کړو ادا
تاچې ترسره ددې خلکو کړې ارمان شهیده
ستا شهادت لوی افتخار به دې تل په پرېښود
دا ستا په نام باندې به ویاړي هر افغان شهیده

ستا شعارونه د هیچا نه هیرېدلای نشي
ستا شعارونه ترن شعار دزوړو او ځوان شهیده
(محمد یوسف ترکی)

# دملغرو امیل

تصمیم نیول دکب خاصیت لري چې نیول یې اسانه خوساتنه یې گرانه ده.

(الکساندردوما)

کوم وخت چې مو تصمیم ونیو دشکك او تردید دروازې وتړئ.

(لیچه)

ځوك چې اخلاق نه لري هیڅ نه لري.

«شامفور»

مه مایوسه کیږی ځکه ممکن آخرنۍ کلی چې به جیب کښې مو ده دامید قلف خلاص کړي.

«ترو تي ویکټ»

خوشالي په هغو کورو کښې وي چې بنیاد یې مینه وي.

«شکسپیر»



نسته په خوبانو کې یو ستا په شان ټناز
نه به یو مین وي په خوله زما په راز
مړ می په خمار کړې چې رقیب ته پیکې تیار کې
سوځم لیمانه کې ځوك یې نه او دي آواز

# موکمرۍ سیمین بره

زړه چې دچا بند نه ری مغه وی بې اثره
که نه دا خو پرو یان غله پیدا دی دزړه سره
افسون دطبیعت دی که به څیرور ته کاته کړې
دا چار دچا پیر چې وینې موکمرۍ سیمین بره

# دښکلي مکر

یارمې عنکبوت څوندی چار باسي تل تارونه
چې کله به په کښېو ژم دامې و ځیبېنې دگونه
زلفې کله لنډې بیا اوږدې کړي پرمخ باندې
ځان تر لاندې پټ کړي زه یې وینم نژویرونه
(ط - ر)

# دجمهوریت پیغام

دجمهوریت زما مداح او ته سلام وایمه
وهیوادوالو ته تبریک ددې نظام وایمه
خدای دې روزی کړي ژموږ دغه جمهوري سرنوشت
دغه دعا به پوره ته لاس سهار ماښام وایمه

دجمهوري نظام مرام ژموږ دملت په ګټه
دایمي شپې به ژمزمو کې دا کلام وایمه
دجمهوري ږیو چې بلا شوه نو لمر د او خوت
دبدبختیو تاریکو لره انجام وایمه

چاچې ظلمونه او غصبونه پر حقوقو کول
دعدالت په محکمه کې په اعلام وایمه
چې نور به نه وي پر مظلوم دظالمانو ستم
(متین زاده) دجمهوري نظام مرام وایمه

# هنـــر او ادب

دهالند دنامتو شاعر «یوسف وان دن وندل» اثر

## نر او ښځه

نراوښځه دواړه یوشان ښکلا او لطافت لري.
دواړه سرتر اخره دجمال او کمال خاوندان دي.
البته نارینه دخپل قوت، قدوقامت او شان وشوکت په لحاظ حق لري چې ځان دنړۍ ښاغلي وګڼي، خو ښځه هم دځو او مخصوصاتو درلوونکې ده چې بونارینه دهغه هیله لري موزون اندام، نرمې ښایسته اعضاوې، هوس بارونکي نرم پوست، او فتنه اچوونکي ستر ګې.
وګوره: اسماني فرښتې هم ددې په شان ولولې طلایي زلفې چې دطلا او نورو ځغو ترکیب سوي دي او پر مرمري اوږو یې خپرې دي، نه لري. نه و یې چې دا ژبیا مخلوق په څه نازدمکښکر پرمخ خرامانه ځي او په خپل ښایست ورځي ته ښکلا وربخښي.
دهغې دمرمري اندام سپینوالي دمرغلرو څخه سپینوالي او دتن نرمي یې دصدف څخه نرمې ګرو کړي ده.

## تـوره

میړه د توري ورکړه وفا لري
ښځه د حسن شرم و حیا لري
توري پوښتني ورځنې مه کوه
مرڅه په ښه لري هغه چې دا لري

«خوشحال خان»

# شهیدانو ته پیغام

وهغو ته مې سلام دی هر زمان
چې وطن د ننګ و ننګ ته وو قربان
چې خیرات ئې خپل سرونه په وطن کړل
صد رحمت شه په دا هسې رنګ انسان
دوطن ننګ و ناموس ئې دې ساتلي
حقیقت دی چې هغه دی غښتلي د ما ن

په سرو وینو ئې کړلي ښکلو او له
ئې سرلوړی په نړی کښې دی افغان
تر پارلي همیش دننګ ناموس له جاردی
جنګ میدان ته په غر رخنګه ځي پښتنګان
دمیو ند جنګ ته که وا چوو نظر موږ
وا ډه چورشوه هغه های کښې دښمنان

لکه باز چې مرغه ونیسي منګول کښې
هسې چ که تري منګول کې ۱۰ کبر خان
احساسات د پښتنو وه یادیدلې
ملالي چې وه ولاړه پر میدان

ښځي دنیا ته ئې ور دغیرت رنګ کړ
لا ژوندی ئې په نړۍ ده نوم ونشان
دوی ژوندي دي لا مړه نه دي مې غلیم شو
په مزار ئې لفمی را ئې بابلان
دجنت د باغ ګلونه ئې نصیب کړي
دی دنیا کښې پري ممسور شول سره ګلان
(محمد خلیل محدران)

# د جمهوریت ترانه

دا نوی نظام زموږ — دا ملی قیام زموږ
تل دې بریالی اوسی — دا پیاوړی قیام زموږ

دا د ابادۍ نظام
دا موږ د ښادۍ نظام

هروخت دې سرلوړی وی
دا د ازادۍ نظام

ستوری د دې نوی ژوند — وخاته پربام زموږ
دا د میړنیو بری
دا د توریالیو بری
دا د ننګیالیو بری
دا د زمریان بری
جوړ جمهوریت سو — دغه و عالی مرام زموږ

تیر مو فشار ونه کړل
تیر موږ بر ظلمونه کړل

وو تاسو تیار و ځنی
پری موږ ځیرونه کړل

لاړ د بد بختی عصر — خلک شول آرام زموږ
تیره پاداری شوله
ورکه غداری شوله
ولاړی د غرور نښی
پوهه بیداری شوله
لاړ د جنګی وختی — بل شو انتظام زموږ

اور به چل اوول نه وی
یو بل ته به غل نه وي
زور خو به کیچه قانون
دلته د ځنګل نه وی
د خو سر پا زانو ته — هروخت احترام زموږ

هره خوا د ښا و ینم
ښکلی دا دنیا وینم

خلاص د اختناق یو
لوی واړه هوسا وینم
وګوره تسلط ان — ویاړی خاص او عام زموږ

# افغان ولس ته د
# جمهوریت مبارکی

افغانانو بخت دی ویښ شو جمهوریت دی مبارک شه
تقوا او اعتلاء د وحدت دی مبارک شه
ستا خاوره خو سره زر ده او دا کانی دی لعلونه
په کار لږ څه زحمت او په اخلاص ګی زحمتونه

وحدت دی شریعت دی دا قدرت دی مبارک شه
افغانانو بخت دی ویښ شو جمهوریت دی مبارک شه
خبری مو سپیڅلی او عمل مو په قرآن دی
دین زموږ کامل او توکل مو پر ایمان دی

جامه د عمل غواړی دا شوکت دی مبارک شه
افغانانو بخت دی ویښ شو جمهوریت دی مبارک شه
د یو لاس څه تلک نه ځی څو یو ځای نشی لاسونه
په یو ګل پسرلی نه شی څو ګلدار نشی دښتونه
شولی خلاص د جهنمه دا جنت دی مبارک شه
افغانانو بخت دی ویښ شو جمهوریت دی مبارک شه
دا خاوره د غیرت ده او بچی یې قول زمریان
شخصی اغراض به ورک شی د وطنه دا افغان
د ظلم کاخ ویران سو حریت دی مبارک شه
افغانانو بخت دی ویښ شو جمهوریت دی مبارک شه
«اصده» هاوخت دا غی چی ارمان ګی د سره ق
نا دوغ په ځکندن وی خود رمان ګی در سره ق
قائده فدا کاره د خدمت دی مبارک شه
افغانانو بخت دی ویښ شو جمهوریت دی مبارک شه
تقوا او اعتلاء د وحدت دی مبارک شه



## عبدالقاهر (شفق)

# ای وطنه

ای زموږ د پلرو کوره
ای زموږ د سترګو توره
تا لره جار تا ته قربان شم
ته لا یې ډک له شور او زوره
ته د مفخر ډک کتاب یې
استعمار ته انقلاب یې
ستا د زړه له دا وتلی
له سرو وینو سره ګلونه

ستا پر مینه روزل شوی
د غیرت نه ډک میړونه
ستا په سپین تندي ځلیږي
د جنګو او سره نقشونه
ستا بچو په ننګه ایستلي
د انګریز و نه کینه نه

ای وطنه موږ خو ستا یو
ستا په مینه کې تل پایو
که ته ژړې که خاندې
که یې وروسته که یې وړاندې
در سره یو نه بېلیږو
که مو سر شي خاورولاندې
زموږ په زړو کښې ستا غمونه
دا پردې ته دې غرونه غرونه
د وجدان په غوږ و اورو
دغه وارا او فریادونه
که دې چیغو فریادو ته
د مظلوم سوو سلګو ته
زوي او لور د تا غوږ کیږدي
ډغ په جګه کې اسمانو ته
پس به کیږو درانه خو پوانه
سره یو به کړو لاسونه
خود او دور به سره وا خلو
دیو والی لوی ګامونه

## د جمهوریت په ویاړ

هندوکش په لوړو غرو کې پکتیا په ښکلو درو کې
د آمو مستو څپو کې د هلمند په طوفانو کې
دا ملي سرود غږیږي
افغاني عظمت ویښیږي
د سهار د نرۍ وږمه کې د بهار په هنګامه کې
د بلبل په ترانه کې د ساقي په پیمانه کې

یو الهام دی چې خپریږي
افغاني عظمت و پښیږي
ان په ښکلې پښتونخوا کې په دې مینه دا دریا کې
د شفق په سره رڼا کې په بیدیا او په فضا کې
دا پیغام دی را رسیږي
افغاني عظمت ویښیږي

دا د لمر په پلوشو کې د سپوږمۍ سپینو شغلو کې
دد ستورو په جلوو کې د افق په کنارو کې
په نور تم رڼا خپریږي
افغاني عظمت ویښیږي
جمهوریت ملي غیرت دی مساوات دی عدالت دی
الهي تحفه نعمت دی پکښې نغښتې حریت دی
«فیض زاده» پرې هوسیږي
افغاني عظمت ویښیږي

**پیغله پروینه «فیض زاده»**

---

ان د کارموزیک غږیږي
ان د ژوند بیرغ رپیږي
ناپوهي سره وجنګه ته
ځوانان پېغلې هوسیږي
اوس دا وینې شوې له خوبه
اوس هو سر شوله حق پوله
تا به هسې شین سمسور کړو
چې جنت دې شي ډاګرانه
دا ویران و پیچلي وطن به
له فولادو نه ودان کړو
ځینګه پیمان لمر و پره دا چې
جوړ به ستر افغانستان کړو

(د۱۵۵مخ پاته)

# په اتلسمه او نولسمه پیړۍ کې...

مایل دارشد وراره هم د شعري دیوان خاوند دی او میرزا رضا د شاه محمود او وزیر فتح خان منشي وچې د اشعارو مجموعه او د بمین او (تذکرۀ برنا باد) ئې تالیف کړې دی.

د مجددي حضراتو کورنۍ هم د احمدشاه بابا له وخته څخه په قول د افغانستان او هند کې ادبي او شعري شهرت درلود، چې شاه نظام الدین متخلص په نظام شکارپور دوری دیوان خاوندو او شاه صفي الله متخلص په صفي هم دري دیوان او علوم او د کتابونو تالیف کړی دی او د ۱۳۱۲ه د یمن په حدیده کې وفات شوی دی. شاه عبدالباقي متخلص په باقي او غلام عمر ددوی او ناصر الدین جانان او شمس المشایخ فضل محمد فضلي هم د دیوانو خاوندان دی شاه فضل الله د شاه غلام نبي زوی عمدة المقامات او د شعر دیوان او محمد حسن د عبدالرحمن زوی د انساب الانجاب او انیس المریدین خاوند او محمد احمد متخلص په ظهور د (هفت مجلس) او سبیل الرشاد او د غزلیاتو د دیوان او شیپږ و مثنو یانو مولف دی.

دوکیل الدوله عبدالله خان پوپلزی کورنۍ هم د احمدشاهي او سدوزو د عصر مشهوره ادبي او اداري کورنۍ ده، چې دوکیل الدوله زوی محمد علم خان علم په دري ژبه شعر وایه او میرهوتک خان هم ددري اشعارو څو دیوانونه لري له دې کورنۍ څخه الله یار خان د راسخ او مولوي محمد ابراهیم هم د علم او فرهنګ، شعر او ادب خاوندان وه.

د شیخ سعد الدین احمد انصاري کورنۍ هم د علم او شعر او تصوف رجال دی ددوی دیوان (شور عشق) او مثنوي او نور ۳٤ کتابونه لري.

دی په کابل کې په ۱۲۲۵ کې وفات شوی دی.

میر ظهور الدین ظهور هم د شعري دیوان خاوند او میر امام - الدین متخلص په درویش د بهتر او دري شاعر، مولف او میر قطب الدین فارغ او میر حسام الدین احمد او میر نجم الدین احمد او میر نظام الدین احمد - او میر فخر الدین مولوي او میر قاموس الدین او میر - سیف الدین عزیزي له دې کورنۍ په دري ژبه شاعران تیر سوي دي.

د حاجي جمال خان محمد زي کورنۍ هم د سدوزو په دوره کې علاوه پر اداري او جنګي کارنامو ادبي څېرې تا درلودې د سردار پاینده خان ورور رحمدل خان کرشکي د اشعارو ددري دیوان لري چې اشعار ئې خوراخواږه او روان او د قدر وړ دي.

سردار مهردل خان مشرقي هم د بیدل د سبک هند په پیروي دري دیوان او مثنوي او څو نور تالیفونه لري د امیر دوست محمد خان دوه زامن سردار احمد خان او سردار غلام حیدر خان د دیوان خاوندان دي. د سردار غلام محمد خان طرزي او ددوه د زوی محمد امین عندلیب دیوانونه هم سته او له دې کورنۍ څخه سردار شهنواز خان د سردار سلطان احمد سرکار زوی او سردار محمد حسن خان د وزیر فتح خان لمسی او سردار محمد عزیز خان او سردار عباس خان او سردار خوشدل خان د مهردل مشرقي زوی هم د اشعارو او تالیفاتو خاوندان وه.

له دې څېړنې څخه ښکاري چې تر احمدشاه بابا را وروسته که څه هم مملکت په ځینو داخلي او خارجي شخړو گرفتار و مګر علمي او ادبي ذوق بالکل نه و مړ خو دا یکوالو او ذوقمندانو پر فکر باندې دوه جریانه ډیر غالب وه.

لومړی په شاعري کې د سبک هند پیروي مخصوصاً د بیدل پر طرز شعر ویل او ددوه ډیر تقلید.

دوهم په تصوف کې مخصوصاً نقشبندي طریقې او د مجددي حضرت د فکري مکتب پیروي، چې په دغه شیوه کې د حضرت مجدد مکتوبات او د حضرت جامي اثار د واړه خوراموثر وه.

«پای»




# د رمانتیسم د مکتب تکړه قهرمان

## Lord G·Gordon Byron

«لارډ جارج ګورډن بایرن» په انګلستان کې د رمانتیسم د مکتب یو تکړه قهرمان دی. په قاطع

توګه منل سوې ده. هغه اثر چې بایرن د نوابغو ... ی په شرق کې داروپا په ادبیاتو کې د ... لوړی

ډېرو لږو شاعرانو په خپل عصر کې اړ لې دي. سره د هغه هم د ده پر ادبي مقام زیات اېرادنیول کیږي

په هره اندازه چې دی د خپلو علاقه مندانو په زړه کې محبوبیت لري او د خپل ادبي سبک په اساس

زیات هوا خواهان لري په هغه اندازه سرسخته دښمنان هم لري په کلي توګه ویلای سو چې دی تر

انګلستان د باندې په تېره بیا په فرانسه، المان او روسیه کې تر انګلستان زیات شهرت

لري.

بایرن په ۱۷۸۸ کال کې په لندن کې زېږېدلی او په ۱۸۲۴

کال کې د ۳۶ کالو په عمر ئې په یونان کې له نړۍ سترګې پټې کړې دي. په ۱۹ کلنۍ کې د خپلو

اشعارو اولینه مجموعه (د فراغت شیبې) نشر کړه چې تر سخت انتقاد لاندې راغله، څکه چې د رمانتیسم

د نوي مکتب او مې اثبې په هغه کې د وز اهلو مېدې او د عصر و زمان د ادبي مکتب سره ئې سازش

نه کاوه پنځه کاله وروسته چې د ختیځ د سفر څخه راستون سو نو د «چایلډ هارولډ» د زیارت شعراو

تر هغه وروسته په (۱۸۱۳) او (۱۸۱۵) کې ئې کوچنۍ د محاصرې، لارد نیوانګی، د آبیډوس کوژده او

داسې نور قطعات نشر کړه. په ۱۸۱۵ کال د خپلې ماندینې د طلاق له امله د عمومي افکارو تر سخت

فشار لاندې راغی څو بالاخره ناچاره سو انګلستان ئې پرېښوی او بیا هیڅ خپل وطن ته نه راو ګرزیدی

څو مړ ګ په وخت کې ئې وصیت وکې چې د ده جسد دې د انګلستان د خاورې څخه لیرې وساتل

شي.

دی د ژوند په وخت کې د انګلستان څخه سویس ته ولاړ څه وخت ئې هلته تېر کې. د دې د پاره چې خپله د پېر معروفه قطعه د «زنداني شیلان» په نامه جوړه او بشپړه کړي نو پخپلو

پښو د شیلان مشهور زندان (برج) ته چې د لمان دروند د خاور پر غاړه واقع دي ورغی. څه موده ئې هلته د بندي په څېر ژوند وکې

څو د پخوانی شیلان د محبوسینو روحیه درک کړي. په نتیجه کې ئې هغه لوی ادبي شهکار بشپړ او تکمیل کې.

بایرن په ۱۸۲۳ کال یونان ته ولاړ څو د هغه هیواد په ملي قیام کې چې هغو د خپلې ازادۍ په غرض د عثماني ترکانو

د سلطې په مقابل کې پر پا کړی و ګډون وکړي، څو په دغه وخت کې د یوې سختې تبې له امله مړ سو.

بایرن د رمانتیسم مکتب ته واقعي رونق ورکي او د ده د مکتب قهرمانان د عالي نړ بنو په څېر میدان ته راغلل

ګوټه، شیلر، لامارتین، هوګو، پوشکین او لرمانتوف له هغو کسانو څخه دي چې فوق العاده د بایرن تر تاثیر لاندې

راغلي وه څکه نو دی د رمانتیسم د مکتب باني او تکړه قهرمان بللای سو.



تهیه کوونکې : میرمن ملالۍ

# دهیواد میرمنې د جمهوریت د کالیزې خاصه درناوی کوي

سږ کال چې زموږ د ګران هیواد دخپلواکۍ د کالیزې سره دجمهوریت بختوره کالیزه یو ځای سوې ده نو دهیواد دراتلو په تیره بیا د میرمنو طبقې خوشحالي یو په دوه سوې ده او سږ کال په جشن کې دنورو کلو په نسبت یوه بې سابقې شور او هوس لیدل کیږي ددې شور او هوس علت دټولنې دهرې طبقې روحي او جسمي ازادي ده چې دجمهوري ملي نظام مرهونه بلل کیږي.

که څه هم د جمهوري نظام دمنځ ته راتلو څخه ډېره نږدې موده یعنې یو کال په تیریدو دی او دیوه مملکت د بدبختیو لیرې کولو او پرمختګ دپاره د یوه کال موده هیڅ دشمیر وړ نه ده خو بیا هم دګران هیواد دژوند په بیلو بیلو ساحو کې د تحول او انقلاب نښې له ورایه ښکاري.

دیوه هیواد اداري سیستم چې پرته په ملي ګټو او دټولنې دخدمت څخه بله غایه ونه لري خو دټولنې د پاره دخدمت مصدر او دټولنې دقاطع اکثریت دمحبوبیت باعث ګرځي نو دافغانستان ځوان جمهوریت چې هم پردغه ډول عالي مفکوره بنا دی او د یوې سپیڅلې ملي روحیې څخه الهام اخلي طبعاً دټولو وطنوالو د محبوبیت او د ټولو دوا احساساتو سره مشامخ دی. په تیره بیا د میرمنو طبقه نو ټولو لوړیات ددې نظام نو دهر کلي کوي. څکه دا محرومه طبقه تر اوسه لا هم په ټولنه کې دهر ډول امتیازاتو څخه بې برخې ده. خو د جمهوري نظام په منځ ته راتلو سره بې دمساوات او برابرۍ نظام دی د ښځو حقوقو ته خاصه پاملرنه سوې ده.

دهیواد د میرمنو طبقه د جمهوري نظام دستر رهبر دغې خاصې علاقې څخه چې دهیواد د میرمنو نتو پر په لاره کې ئې لري دزړه له کومې مننه او شکریه کوي.

په افغانستان کې دمیرمنو اوسنی نهضت او آزادي چې زموږ د ملي قاید دحکیمانه ارادې مظهر ده یو د ښځو مترقي ګامونو څخه دي چې دخپل دمخنی حکومت په دوره کې ئې دهیواد د پرمختګ په لار کې اوچت کړي.

په دې توګه میرمنو دخپلو پښتنیو دودونو سره اوږه پر اوږه په اداري چارو کې دهیواد د پرمختګ په منظور برخه واخیسته څکه نو دا نهضت موږ ددې دارادې مرهون ګڼو او متیقینه یو چې دا نظام به د ملي لارښود تر قیادت لاندې دمیرمنو دحقوقو د اعادې او میرمنو د نهضت دانکشاف په لار کې به زړه پورې متین ګامونه واخلي څو د مساوات او برابرۍ شاهد د عمل پر کرسۍ مسند نشین شي.

په پای کې د جمهوري نظام د بختورې کالیزې له امله د میرمنو د نهضت موسس او د جمهوري انقلاب رهبر ښاغلي محمد داؤد د مرکزي کمیټې غړو د افغانستان قهرمان اردو او ټولو وطنوالو ته ددې بختورو ورځو مبارکي وایم.

ژوندی دې وي افغانستان

تل دې وي جمهوریت

# د نوی زیږیدلی ماشوم خارنه

هغه معامله چې د علوړو او ښځې و میاشتو حمل و لری نو باید دی چې دا سی میندی په خپلو خوړا-

کو کې دا سې غذا وی و خوری چې په خپل ترکیب کښې زیات مقدار د ویټامینونه او میترا لونه

ولری څکه چې د دوی ماشوم په دی مرحله کښې ډیر ژر نشو نما او وده کوی.

هغه میندی چې د حمل په لومړی او یا دوهمه میاشت کې وی د ښی ها په دوا او د خوړ لو څخه باید

ډډه وکړی څکه چې د دوا او خوړل په دی مرحله کښې نه یوازی د ماشوم د نشو نما د تاخیر سبب گرزی،

بلکه د ماشوم د غږو د ممیو بو پیدا کیدو سبب هم کیږی. د ماشوم د ولادت څخه وروسته د هر څه و مخه

باید ماشوم په .و ه پاک ټو کره کې پټ گڼل شی او هغه مایع او افرازات چې په پزه، خوله او

ستو نی کې یې موجود دی پاک شی تر څو د تنفس لاره خلاصه شی او ماشوم په آسانی سره تنفس وکړی

که چیری ماشوم بیا هم: تنفس کولو تکلیف درلو دا و تنفس ئی منظم او ژوندی وی باید چې د سکشن په

واسطه سره ئی افرازات د بانه ی وایستل شی.

که د ماشوم شونډې او د لاس

قدرت کم ؤ نو باید د ماشوم د ښځو تلی او پوندی او د څټ شا د خرا و مو چل شی تر څو په دی ډول د تنفس مرکز تنبیه او

ماشوم د تنفس کولو قدرت پیدا کړی.

که د ماشوم شونډې او د لاس گوتی

شین رنگه واری نو دا ددی معنی ورکوی چې ماشوم د آکسیجن په فقدان او کموالی مبتلا دی نو باید په ډیر ه بیړه

سره د آکسیجن خیمه استعمال شی تر څو ماشوم د مرکزی عصبی سیستم په اسپکسیا مبتلا نه شی.

د هغو ماشوما نو د معدی د تخلیی لپار ه.

هغه وشی کوم چې د هغوی میندی د شکر په ناروغی مبتلا وی عموما به شکره

مبتلا میندو ماشومان د پوست، رنگ او د وزن له نظره له ورایه معلوم وی.

د ماشوما نو د ستر گو ساتنه د ولادت څخه وروسته هم جدی پاملرنه غواړی او باید وروسته د ولا دت څخه د ماشوم

په ستر گو کښې سلور نایتریت محلول او یا د پنسلین محلول پکښې واچول شی او څه وشی چې د ماشوم ستر گو د نورو ناو لو

کا لیو سره تماس و نه کړی تر څو د ماشوم د ستر گو د ړوندوالی او سوروالی سبب نه شی.

په یو لیږ پاتو ماشو مانو کښې د ولادت څخه وروسته بعضی خوراړی ایدل کیږی چې ددی خوراړی هر امل

د زیږیدنی مکرر ددی لپاره چې ماشوم مړ نه شی باید د خولې او یا پوستکی لاندی د وینا مین (کا) مرکبات زرق شی.

وروسته د ولادت څخه ماشوم باید دا سې وضعیت سره کښېنو دل

شی چې ماشوم په آسانه او ازاده ډول سره تنفس وکړی. بهتر ینه طریقه ئی دا سې ده چې د ماشوم څټ

دا سې کښېښودل شی چې پښې ئی درجی د شاه پر خوا کو ږ والی ولری نو ماشو م په آسا نی سره

تنفس کولا ی شی د ماشو م د حرارت درجه د هغو دوا و باشیږو ساعتو وروسته و اخیستل شو. که

چیری د ماشوم د حرارت درجه د ښځه نوی نا رمل یت څخه کښته وی نو باید ماشوم په یو ه گرم ځای

او یا په یو تود ټو کر کی ونغښتل شی. د ماشوم پو ست باید په پاک

ټو کر ه سره پاك کړ ل شی او باید

چې د ماشو م پوستکی په دې وخت کښې خوږ نه شی او هم د پوستکی د سولو او زیات پا کوالی څخه

ډډه وشی څکه چې د زیاتو موښلو څخه د ماشوم پوستکی زخمی او له دی

لاری مکرو بونه د ماشوم عضویت

ته داخلیږ ی او په دې ډول د پوستکی

بعضی ناروغی منځ ته راځی.

# ځوانان

تهیه کوونکی: رحمت الله «مروند»

## ځوان نظام پر ځوانه مفکوره او ځوان قوت متکی دی

تیر کال د سرطان په ۲٦ نیټه د ګران هیواد په فضا کې د راډیو افغانستان په څپو کې د جمهوریت د منځ ته راتلو په غرض د ملي انقلاب د لارښود پیغام خپور سو. د دې بختور پیغام په اوریدو سره د هیواد د هر ځای په تیره بیا ځوانانو یو ملي اختر برپا په کړ. او دا ورځ د افغانستان په تاریخ کې یوه طلایي ورځ ثبت سوه ځکه نو دا ورځ یوه ابدي تاریخي ورځ ګڼل کیږي چې هر کال به په خاصو مراسمو سره په ټول هیواد کې لمانځل کیږي.

جمهوریت چې د اکثریت د هیلو ښکارندوی دی د خپل تاسیس له وخته څخه بیا تر اوسه یعنې د یوه کال په موده کې په بیلو بیلو ساحو کې د ګران هیواد د اعتلا په غرض د قدر وړ خدمتونه کړي دي چې د هغو شرح په دې لنډ مضمون کې نه ځاییږي. هیوادوال یې د فقر، لیسټی، بدبختۍ ظلم او ستم څخه وژغورل، ظالمان یې د عدالت منګولو ته وسپارل، د اجتماعي او اقتصادي امورو په غرض په ملي ګټو ولاړ قوانین او لوایح منځ ته راغله او د هیواد د اولاد زیاتی هوسایني او د هیواد د ترقی په برخه کې لوړ هم قدم باسي.

هر ګله چې دا نظام د ځوانی مفکورې څخه الهام اخلي او پر ځوانانو قوت متکی دی، نو لازمه ده چې موږ د خپلو ځانونو سره حساب وکړو او ځانونو ته د خپلو وجدانو په حضور کې دا کمه وکړو چې د دې یوه کال په موده کې موږ د هیواد د پرمختګ په لاره کې څه کړي دي.

آیا عمل مو د ګفتار او هغو وعدو سره یو شی دي کم چې د دې نظام د ملاتړ او پرمختګ په لار کې موږ کړي دي.

که مو عمل د ګفتار سره یو شی او هغو وعدو چې د هیوادوالو د هوسایني په خاطر موږ کړي دي نو له موږ ترسره کړي وي موفق به یو او د هیوادوالو او نظام په وړاندې به کوم مسئولیت نه لرو او د جمهوریت د لومړۍ کالیزې ورځې به په پوره سرلوړۍ دا باندې تیری سي او د آینده د پاره به د هیواد د ترقی، د خلکو د ارامۍ او د جمهوریت د ارمانونو د ترسره کولو په لار کې نوي او ګټور پلانونه طرحه کړای سوای. که مو چیری خدای مه کړه د عمل او ګفتار تر منځ توپیر راغلی وي نو لازمه ده چې خپلی سهوی ته متوجه او له صدقه ګړی څخه تصمیم ونیسو چې د هیواد د آبادۍ او پرمختګ د پاره کار وکړو. د جمهوریت د ځوان رژیم د خدمت په لار کې چې زموږ د هیلو ښکارندوی دی د ژوند تر وروستی ګړی پوری ودریږو او ملی ګټی پر شخصی ګټو باندی غوره وګڼو ځکه تاریخ موږ په خپلو پاڼو کې نوم په علاقه خط وراتلونکو نسلو ته د یادګار په توګه پریږدی.

اوس چې موږ د جمهوریت لومړۍ کالیزه د خپلو اکی تر پښتو د سیوري لاندی لمانځو د زموږ فریضه ده چې د وطن د خپلو اکی دلاری د شهیدانو ارواحو او د جمهوریت د قهرمان شهید پاک روح ته درناوی ولیږو او د دی نظام د بریالیتوب په هکله خپل ملی رهبر او د هغه فداکار و ملګرو ته مبارکي وړاندي کړو.

آباد دی وی افغانستان

تل دی وی جمهوریت

ژباړونکی: زلمی یارمحمدزوی

# دشاعر نبوغ

(دوهمه برخه)

اسکیرلي روژا پاتې پېسې چې به
دسمال کې ئې ساتلې وې به لړزاندو
لاسو یې له دسماله خلاصې کړې

هر څه چې وې هغه ئې وما ته راکړې
دستر ګو څخه یې داو ښکو باران
جاري شو. بیچاره ډېر ژړېدوی.

تودې آینده یې په راتلو نا سته وه
فکر مې و کړ چې که ژه خپله وقا
پرځای ونکړم او ده دې سره واده

ونکړم او هغه پېسې چې وما ته ئې
راکړې دي ورته بېرته ورنکړم
نو را به په یو سخت دردناك او شوم

سرنوشت اخته شي لیکن ما ورته
ډېره ډاډ ورکړه. قسم مې واخستی
چې خمار او عیاش مې پرا یښی ده

او ده ستا سره واده کوم.

څه وخت چې ژما خبرې بد بختې
روژا اورېدې نو د خوشالۍ څخه

په کالو کې نه ځا یده له خپل ځان
ئې ژما پر څیګر واچاوه په داسې
حال کې چې ستر ګې ئې داو ښکو

ډکې وې په یوه غمجن اواز ئې
وویل: «ما تنها مه پرېږده ...
ژه غواړم چې ستا ژوند ملګرې

سمه او د ښکلې ملکه د خپلې لمن څخه
پاکه کړم خپله توبه ثبوت ته ورسوم
ترڅو د خدای او د خلکو په مقابل

کې د یوه شرافتمندانه ژوند
مېرمن شم.

د روژا د ډېر ژړونکي او غمجن
اواز ژما کوګل ژخمي کړ او
اعصاب مې وخوځول شول، بدن مې

ولړزیدی. هغه پېسې چې مې د روژا
څخه واخیستی په جیب کې مې
تخته کړې یوه بلا مې د مینې او

محبت په ډك نظر ورته وکتل،
ورکو یې شوم د مهربانۍ کور
ودانی مې ورته وویل او پسله هغه

مې پر ښکلي مخ مچ کړه، وروسته
تر دې په خپل کار پسې ولاړم
ما روژا پرېښوده په داسې

حال کې چې د خپل ځان نه بېزاره وم
پر خپل ځان باندې مې لعنت ا ر بد
ویل د خپل ځان نه شرمنده وم

چې څنګه دا پست او ناوړه کار
مې کړم د غه افکار، عواطف او
اندیښنې ژما په ژړه کې شور ماشور

پیدا کړی. او دی و وچې د غه
غمګیني اندیښنې د ژړه د ژړونکې
او غمګینو اشعارو په شکل ښکاره

کړم. کله به مې قلم را واخیست
خو بیتل مې چې هغه غمګین اشعار
چې په ذهن کې مې وه د کاغذ پر مخ

و لیکم اما وما ته عار او ننګ ؤ
چې خپل د غه ژور احساسات نوشته
کړم نو له دې سببه مې قلم و غورځاوه

خپل ټول عواطف او احساسات
مې غفه کړل د لیو نی په شان مې

مخ پر ډېښتو و نیوی. اما د غه غمجن او
دردناك احساسات، نا پایه غم او وېر
مې د دې مانع نه شول چې ژړه دې و کنتس

ته ورنشم. عشق مې ورځ په ورځ د کنتس
سره زیاتوب پیدا کاوه، بلې غرور او
تکبر مې د شهامت، و شفقت پر حس باندې

غالبه شوه، روژا بیچاره مې هېره کړه،
پر له پسې دری هفتې و روژا ته نه ورغلم
په ډېره پستۍ او ناوړه وضعیت مې

هغه روپۍ چې روژا د خپل ژوند د بهبود
د پاره ټولې کړې وې ما هغه ټولې روپۍ
و بېوفاه کنتس ته مصرف کړې بې له دې

چې د بې‌بهاني فکر وکړم او وجدان مې
پریشان شي. عینې نو دې دوستان راته
راتلل او داسې ئې راته ویل چې: بېچاره

روژا دې ایله کړه هغه ډېره غمجنه او
دوبره نه ډکې شپې او ورځې تېروي
هغه په تا پسې ګرځي چې دا روپۍ چېرې

او وچا ته مصرف وې لیکن ما کومه توجه
و روژا ته ونکړه پر مخ مې هېره کړه.
ټول فکر او خیال مې د کنتس ته متوجه

ؤ د هغې سره په کشمکش او جنجال اخته وم
کله به یې ما ته راکوله او کله به بې اما
مانه ورکوله. ژما د غه ژیار او کوښښ ؤ

چې د دې جفا او عناد له منځه یوسم به
تېره بیا هغه د روژا روپۍ چې ور دی نه مې
مصرف کړې. څو په نتیجه کې مې بل څه نه

درلودل پرته شوق، عشق او جنون
د بې مخې کنتس سره.

ماپه‌ی پرسخت ژی‌ه‌وو ته‌وو یل : «رووا..... ژ ه نسم کولای چی خیلوعوا طفوا واحساسا تو

ته تغیوور کی م که می ته خطا ایستلی ئی او تا ته‌می فریب دکی ی دی ماوبخشه» روژا غلبلی کی ی

«ئردی اندازی پوری هفه پرتا کرانه ده‌ا» ما جواب رد کی . «ژه‌ دهفی دعشق په‌مقا بل کی هیخ

چول قوت او مقاومت ته‌سم بکاره کولای» په‌د ئه‌وخت کی غم رقلی دوژا په‌چ پر عصبا ایت لی

زانده‌شو ئیدان په خیلو غاچو کی هینگه‌و لیول پر ملا باندی ئاو شوه‌او وبی وبل «ژه بایده هفه‌وو یغم

بلی بایده‌حقه‌ی بی و یغم... هفه هفه‌چ پره چکلی اوژیه‌وو هو انکی ده،ژه غواهم؟ چی هفه‌ولی ویغم چی»

وپو هیبم؟ چی دا حتکه چا یست دی چی ته‌بی دو ته‌لیوال کی ی اوژه‌بی بیچاره او بدبخته کی ی

یم،دا چایست په‌کومه اندازه‌ده ی ژه په‌حیرت کی غرق شوم؟ او رته ومی و یل» آیا ته‌لیوانی شوی یی

روژا جنون آمیزه‌و مسل اوداسی یی ووبل که ته و غوا هی او که و ته غواهی ژه بایده کنتس سره

شوودی وگوردم، پوه شوی ما هفه وویل ه روژا لکه دغرو لیونی دکنتس دما ای و غوا ته په چیره

تیزی ودمنه‌ه کی ه، په‌دی وخت زمادسره عقل ولادی پا دروژا پسی میودمنه‌ه کی ه غوښتل می چی

روژا دخپل تصمیم هفه‌و اهدم، اماپه‌چیر قهر او غضب یی زما لاس یپر ته کی او په‌چیره چټکتیاسره‌د کنتس دما ئی

باغچی ته‌ورننو تله.د دروازی و محافظینو ته‌یی هیخ اهمیت ورنه کی ژه‌ سمدستی په‌دو ژ پسی رهی وم کله‌چه

می تر لاس لیول او کله‌یه‌می تر کالو کشول تر غوددی دعرم ما نع شم لیکن روژا په‌چیر قهر او غضب او فریاد زما غخه خان خوشی

کاوه اود کنتس و خوا ته‌ئی دلیونی پشان داسی ورغستل لکه غوک چی دسیل اد طوفان غخه خلی شپده دقصر هفه‌لوی سالون ته‌ورننوتله‌چی کنتس هلته ناسته‌وه

چایسته‌ورجهین کالی اغوستی وه‌روژا چی دکنتس سپینه سینه، چایسته بازوگان اداودهه‌ غاهه‌و لیدله‌چیر ه قهره لیونی شوه‌چیپ ته‌ئی لاس کی داسی معلومیده‌چی دوژلو په یوه‌اله پسی گرزی ژه‌ وارخطا سوم او داسی گمان

می وکی چی د کنتس دوژلو تصمیم ئی نیولی دی ئو له‌دی جهته‌می پر روژا حمله و کی ه لیکن خان یی راغخه بچ کی او

یوه‌سینه‌یی دجیپه‌راو ایستله‌چیغه ئی خلاصه کی ه او غلبلی ئی کی ی: «ددغی چنگی چایست ته‌مین کی ی ئی

او ما ته‌دی فریب راکی ی دی خوسردان ورحی به پیا ددی چا یست وله وپئی، دغه‌ده‌ستا جزا او زما هج به دی وخت

کی ئی خپلی قواوی راټولی کی ی دحیوان پشان یی پر کنتس باندی حمله هفه‌سوغولکی ما یچ چی په سینه کی وه

د کنتس پر مخ یی و پاشل او دلیونیانو پشان یی و خندل، کنتس دمخ :سوخته په غلبلو سوه لاسونه ئی پر مخ باندی و نیول په‌ماغی

کی ئی سوی ئدر ونا که کی یی ی چوړی کړی ورو ستانه پیسده‌سوه او پر مځکه ولو یدله.

دغی غمنا کی صحنی پر ما باندی چیر تاثیرو کی لکه چکه چی زما پر سر باندی دا ایله‌سوه وی

سو علم ددرد یدلی زمری په‌غیر می پر روژا باندی حمله‌و کی ه غوښتل می چی رژ ژاپه یوه غخه تر دنیا

تیره کی م اما روژا زما دلاسو په منځ کی دمار په‌شان حرکت کاوه اودلیونیانو په‌شان یی خندل په‌خپل

هج اخستلو یی ژی ه سوړه کی او ژه‌یی مخاطب کړم «اوس کولای شی چی معشوقه‌دی گرانه‌و بولی

دښتیا چیر هفه‌چیره ښکلی دحسن او جمال میرمن ده‌داسی نه‌وگوره وگوره.» په‌دی وخت دماتی او گران

داور سیدل روژا یی ونیوله لیکن روژا یی له کومی هقا بلی تسلیم سوه روژا تو کرا او ته‌مخ وډراهادوه

او داسی یی ور ته‌وویل : «ماو نیسی هر چیری چی می بیا یاست کولای شی، ژه‌ نورو ژندان نه‌ قر

اوهر گئ ته‌اهمیت نه‌ورکوم، ما خپل گران محبوب دتل لپاره‌ده کنتس له‌غیزی غخه محروم او جلا

کړ لکه دخپل ژوندانو نیکمرغی غخه محروم ه کړی وم» د روژا سترگی له‌او ښکوچ کی سوی او

گیله‌منه یی له‌ما نپلا کی ه دغه‌صحنه په می هیخ هیره‌نه سی حکه ددغی شپی غخه‌زما په‌ژوند کی کلی پدلون

داغي.
بلې، ما نسواې کولای چې
بدبختۍ او غم د ټولې دوژا چې زما

د بې وفایي په خاطر په اوو کاله بند
محکومه شوه هیره کې م خودا
توان هم دا پوره نه ؤ چې د کنفس

خیال او فکر چې زما د شعر د الهام
منبع وه او د چغنی مینه او محبت
مې ورسره درلود زړه څخه
و باسم.
وروسته تردې مې بله پناګاه نه
درلوده پرته له شعر ویلو کوښښ

مې کاوه چې هغه د سوز و ګداز عشق
چې ما د زړه وړونکې کنفس سره
درلود پخپلو اشعارو کې مې مجسم
کول. او په دې ډول مې غوښتل چې
خپل ابوغ او فن د جرم د پردې له
ایسته کړم او د بشر د خوشبختۍ
د پاره مې د خوږو اشعارو په ویلو
شروع وکړه.
اما په آخر کې مې فکر وکړ
چې یوازې په شعر ویلو مې د زړه
غم نه لیرې کیږي. عزم مې وکړ
چې د دوژا سره مرسته وکړم څو په دې
ډول خپل غم تسکین کړم هغه غم
د ټولې دوژا د لیدو لپاره چې په
زندان کې ئې شپې او ورځې تیرولې
زندان ته ورسم او د دې د پاره پیسې
برابرې کړم څو آینده یې له
فساده وژغورم د دوژا او کنفس
تراژیدي سرګذشت زما د پاره د
عبرت درس ؤ چې زه ئې د میاشی
څخه د خلکو خدمت او نیکۍ ته سوق
کړم. پای

# نا یابه ملغلرې

هغه وخت یو هیواد د نیکمرغه او بریالی
دی چې د هغه مهم او حیاتي کار ونه
د یادوړې، با احساسه او وطن پرستو
ځوانانو له خوا سرته ورسیږي.
د جمهوري نظام په رڼا کې باید ټول

په ګډه او په یوه زړه د خلکو
د اکثریت د ارمانو نو د سرته
رسولو په لار کې سرله او سه کوښښ
وکړو په دغه برخه کې یوازې
خبرې کفایت نه کوي کوم شی
چې ارزښت لري کار او عمل
دی.



تجربو په کرا تو ثابته کړې
ده او تاریخ شاهد دي چې یووالی
او اتحاد د یوه هیواد د نیکمرغۍ
د پاره ګټور دی او برخلاف نفاق
او بدبیني د هیر ته پاته کیدو
سبب ګرځي.



دغه خاوره زموږ د ټولو
او دغه هیواد زموږ د ټولو دی
موږ هر یو وظیفه لرو چې د هغه
د لوړتیا د پاره کوښښ وکړو
او د خپل وطن د استقلال په خاطر
د سالم او ګټور تفکر د څرګندولو
څخه ځان و نه ژغورو.



زموږ نوی جمهوري نظام
زموږ ټولو څخه هیله لري لکه څنګه
چې زموږ دا ټولنیزې وظیفې او
مسئولیتونه دراته دي په هغه
اندازه باید چې زموږ جهد زیات
عزم مو کلک او همت موږ بر
لوړ وي.



هغه څه چې زموږ پخوانیو سرته
رسولي دي ان موږ پر هغو باندې
قضاوت کوو او هغه چې اوس موږ
کوو سبا ته به تاریخ او د راتلونکی
نسل قضاوت باندې کوي.

(۹۵ مخ پاته)

## فلکور د ژوند...

لکه څنګه چې له خیاله او ژړ د پیدا کیږي
د فارز له ارزو څخه فلکور د منځ ته
راځي، د بسیطو وسایلو د موجودیت
په زمانه کښې فلکور دی هم بسیطوی او
څنګه خلک په هغاني د دې چې د غرو او سلسلي
سوري کړي په دې هغه کښې کیږي
چې د غرونو لوړې څوکې تر پښو
لاندې کړي آخر د خپل وخت د مترقي
فلکوري ته یو متل پاته شي چې دا بې
(که غر لوړ دی په سر یې لاره ده) او چه له
فلکوري سره تکنالوژي مرسته وکړي
نو بیا د غرونو په سوري کولو سم بریالی
کیږي او په دې باره کښې د عصر شاعران
په نوي سبک نوي ادبي شاهکار ې
وړاندې کوي.
له پورته تنیو خبرو څخه څرګندیږي
چې ادب (په هر شکل چې وي) د ژوندانه
د کاروان سره سم د یوه واقعي مصور او
عکاس په حیث روان وي او موږ اید یو
چې د خپل ملي ژوند قیافه د ادوارو او تحول په
هره مرحله کې د ولسي ادب په هنداره کښې
هم وګورو نو په دې حساب د غرو فلکور
زموږ د ټولنې د یوه قیمتي پانګه ده چې
باید له منځه ولاړه نشي.

(د ۸ مخ پاته)

# د جمهوریت...

هڅه او د ښارونو، کورونو د آبادولو او په هیواد کې د کرنې د صنعتي کېدو د پاره ګټور او په زړه پورې عملي اقدامات وسوه چې په نتیجه کې د هیواد د کروندګرو ژوند آرام، هوسا او هغه مشکلات چې ورسره مخامخ وه لیرې سول.

په هیواد کې د کرنې حاصلات په داسې اندازه لوړ ولاړل چې د پخوانیو وختو په نسبت څو چنده زیات سوه.

اوس هم ځوان جمهوري دولت د هیواد د کروندګرو د ژوندانه د ښه سمون د پاره داسې ګټور پروګرامونه یو په بل پسې تر اجرا لاندې نیسي چې په راتلونکي نودي وخت کې په خارجي هیوادو ته خپل زراعتي محصولات صادر او په دې توګه به د هیواد ملي اقتصاد پیاوړی او پر پښو ودروي.

په هیواد کې د صنایعو د پراختیا په هکله جدي اقدامات سوي او اوس هم روان دي. په هیواد کې د یو شمیر کانونو څخه د استفادې او د هغو په باب د څېړنو په هکله زیات فعالیتونه جاري دي چې د دې څېړنې د ثبوت د پاره د هیواد د اخبارونو خپرونې زموږ په دلیل کېدای سي.

په هیواد کې د بنو، لارو جوړول سوي تجارت په اساس عملاً پراخ ګامونه اخیستل کېږي او د دې د پاره چې ملي اقتصاد مو پیاوړی او د هیواد اکثریت برخې ته خدمت وسي جمهوري دولت داسې نیک اقدامات کړي دي چې هر یو یې د قدر او ستاینې وړ دي. د صادراتو او وارداتو تر منځ د انډول ساتلو د پاره چې د ملت په ګټه دي هلې ځلې روانې دي.

دغه رنګه د کارګري طبقې د ژوندانه د سمون د پاره هم داسې اقدامات وسول چې په نتیجه کې د کارګرو ژوند سم سو او اوس په آرام فکر او هوسا توګه خپلو کارونو ته دوام ورکوي.

همدا ډول د هیواد د اکثریت خلکو د ژوندانه د سمون د پاره په هره برخه کې د داسې نیکو اقداماتو څخه یادونه کولای سو او د سر په سترګو وینو چې د ځوان جمهوري حکومت د خوا د هر اقدام او هر ګام اخیستلو څخه مقصد او هدف دا دی چې هیواد آباد، نیکمرغه او د ترقۍ پر لوړو ته یې ورسوي.

په اوسني عصر کې چې نور پرمخ تللي هیوادونه د تمدن د مزایاو څخه برخوردار دي خو زموږ هیواد د پخوانیو ناوړه شرایطو په سبب د دغه کاروان څخه وروسته پاتې دی جمهوري دولت هڅه کوي چې هیواد په خپلو پراخو ګامونو سره د دغه کاروان سره یوځای سي او ګران افغانستان ژر تر ژره د مقصد سر منزل ته ورسوي.

دغه عالي هدف ته رسېدل د ټولو وطنوالو څخه صادقانه خدمت، ایثار او فداکارۍ غواړي او وطن ته په کلک عزم او ټینګه اراده سره د کار کولو په لار کې مشکلات او سختۍ پر ځان ومنو همدا د زموږ د پریالیتوب لار.

---

## جمهوري وجیزې

جمهوریت میراثي رژیم ته دی پوره او لویه معنا یې دا ده چې ټول خلک یو شان برابر حقوق لري



د جمهوري نظام په رڼا کې د پښتني کوښښونه د هیواد د ټولو وګړو د هوساینې او نیکمرغۍ برابرونکي دي.



د افغانستان خلک د جمهوریت تر بیرغ لاندې کولای سي چې خپل هیواد د پرمختګ او لوړوالي پر لور ته ورسوي او دا ثابته کړي چې د دوی د نیکمرغۍ او هوساینې په لار کې د ناممکن خبره نسته.



د جمهوریت د عالي او پرمختللو هدفونو تطبیق زموږ د ملي او ټولنیز ژوند په ټولو خواوو کې د هیواد د ټولو خلکو په هڅه او کوښښ امکان لري.

# په‌دې گڼه کې



## یادونه

څرنګه‌چې دپښتو دد ریم‌مخ مطالب دطباعتي سهوی له‌امله‌دپښتو دوهم‌مخ ته‌اوښتي دي اود پښتو ددوهم مخ فهرست دهغه پرځای په دریم‌مخ کې راغلی دی نو لطفاً ددریم مخ دمضامینو پاته برخه‌د پښتو په‌دو هم‌مخ کې ولولې.




دجمهوریت دهر کلی په هکله دکندهار دخلکودلوړو احساساتو یوه پرشوره صحنه

دکندهار دولتی مطبعه